


# کندهار



زموږ محبوب ټولواک همایوني معظم اعلیحضرت
دهیواد دخپلواکی ستر حامی چی د شاهانه ذات
تر ستر قیادت لاندی د ژوند په ټولو مادی
او معنوی ساحو کی دگران هیواد
ستر پرمختگونه په برخه شوی دی



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه غازی
د خپلواکی د بیرته اخستلو دمعرکی
ستر قهرمان او دهیواد ناجی

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال دریمه ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۲۹

کالنی بیه

په کندهار کې [۲۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کې [۳۲] «

په بهرنیو هیوادو کې یو ډالر

د غبرګولي میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

---

## ددې ګڼې مضامین



د کابل فاتح والاحضرت مارشال شاه‌ولی
خان غازی چی د خپلواکی د بیرته
اخیستلو په‌معرکه کی برخه اخیستی ده



مرحوم والاحضرت سپه‌سالار غازی سردار
شاه محمود خان د پیوار فاتح

# د خپلواکۍ ساتنه

په دنیا کښې د ملتونو او هیوادونو د پاره د ژوند بهترین او ډېر ګران نعمت خپلواکي او ملي استقلال دی او کوم ولس چې دغه ستر نعمت لري او ملي حاکمیت ئې خپل وي، خپل په خوښه د خپل ملي او اجتماعي ژوند مقدرات په خپله فیصله کوي، پر ځان، ملي قوت او خپل ولسي حاکمیت متکي وي، ملي غرور، قومي شرافت، ملي او دیني مقدسات، کلتور او هر څه ئې خوندي کېدای شي او کولای شي چې د خپلو خلکو د ایثار، فداکارۍ، تحول پسندۍ د پرمختګ پر لور د هڅې او فعالیت د لارې د عصري او مترقي ژوند ډېر لوړ پړاو ته ځانونه ورسوي او د نړۍ د مترقي هیوادونو په قطار کښې ودرېږي.

---

له کله څخه چې د خپلواکۍ ګټنه او لاس ته راوستل سربښندنه، زحمت ګښنې، مېړانه او قوي عزم غواړي د غه رنګه د خپلواکۍ ساتنه او د دغه ستر امانت سالمیت هم زړورتیا، فدا-

کاري، پوهه، وطندوستي او لوړ بشري اخلاق غواړي او په اوسني عصر کښې هغه انسانان د ملي خپلواکۍ وړ دي او د دغه ستر نعمت په قدر پوهېږي چې د خپلې سیاسي او ملي خپلواکۍ

څخه د اقتصادي حالت د ښه کېدو، له هیواد څخه د مادي او معنوي نیمګړتیاو د منځه وړلو او د لوړتیا د لارې څخه د خنډونو او مشکلاتو په ایسته کولو کښې ټول خلک په ګډه زیار

باسي او د هیواد هر وګړی د ملي مسؤلیت احساس کوي او په دغه عالي روحیه پرمخ درومي او خپل هیواد، خپل ملي کلتور او نوامیس د اوسني علم، عصري کمالاتو

ساینس او تخنیک په سیوري کښې په ښه توګه ساتي او د خپلواکۍ امانت راتلونکي نسل ته صحیح او سالم سپاري.

افغان ملت په دغه هکله تر هر چا پیش قدمه او سرلوړی دی، دا ځکه د افغان په وینه، رګونو غوښو او هډوکو کښې د خپلواکۍ مینه اخښل شوې او دغه معنوي میراث د پلرونو او نیکونو څخه ورپاتې شوی دی.

زموږ د هیواد هره ګټه د خپلواکۍ سنګر دی او د هیواد په هر ګوټ کښې پر هغه باندې د زړورو او غیرت نه ډکو پښتنو، پیغلو او لکونو ننګیالیو ځلمیانو وینې توی شوې او دا هیواد د کلونو، کلونو راهیسې د زړه ورو افغانانو په مېړانه، سربښندنه او افغاني عزم ساتل شوی او اوسني نسل ته سپارل شوی دی.

دوره چې نن د علم، عصري روزنې، اوسنیو کمالاتو، نوي ژوند، پرمختګ او نننیو انکشافاتو له ځینګه نیولې ده، او زموږ ملت او حکومت دا کوشش کوي چې په اوسنیو

هلو ځلو کښې بریالیتوب وګټي، د یوې خوا موږ خپل پښتني غرور، قومي شرافت، افغانیت او غیرت، ملي کلتور، دیني مقدسات او عالي اخلاق ساتو او د بلې خوا غواړو خپله سپېڅلې

خاوره او ګران هیواد ودان کړو خپل خلک د ژوند په هره برخه کښې د اوسني عصر د ایجاباتو او نننیو غوښتنو سره سم پرمخ بوزو او د مترقي هیوادونو په څېر آرام، نیکمرغه او ښه ژوند

ولرو دا ټول ددې د پاره چې ملي خپلواکي مو ساتلې او د دغه ستر نعمت د ګرانښت مو پر ځای کړی وي، او ویلای شو چې د علم او عصري کمالاتو د لارې دغه ستر امانت خپل راتلونکي نسل ته وسپارو.

د خپلواکۍ خوندي کول او هغه خپل راتلونکي نسل ته په سالمه توګه سپارل تر هر وخت زیات له موږ نه ملي یووالی، وطنپروري

(نور په ٦ مخ کښې)

د الحاج حبیب الله (سرباس) ژباړه:

# شعر څه شی دی

## او څه صفات لري؟

دمخه تر دې چې په ترجمه شروع وکړم غواړم چې د دې موضوع په شا وخوا کښې یو څه و وایم.

شعر ویل او شعر لیکل یو مهم او ګران فن دی چې د لطیفو او ښکلو ذهنو په جمله کې حسابیږي شعر ویل ځانته خاص قواعد، اصول او ترتیب لري چې ځینې ئې

د ظاهري شکل او ځینې ئې د معنوي شکل دپاره استعمالیږي شعر که څه هم یو بیځلي او سره تړلی مضمون دی مګر دومره حلاوت او خوږوالی لري چې په نثر کې نه لیدل کیږي نو هر هغه شعر چې صحیح ویل شوي وي معنی او مفهوم ئې هم هغومره د خلکو پر روحیاتو

باندې عمیق تاثیر کوي. بلبل او ګل چې په ظاهره کې مرغه او بوټي دي د شعر په قالب کې یو داسې مقام ته رسیدلي دي چې هیڅ تصور ئې نه کیږي.

شعر یو داسې عمیق دریاب دی چې که د عاشق او معشوق د زړه عواطف او احساسات په هره اندازه له دغه دریاب څخه راواخیستل شي بیاهم د قطرې اطلاق پرکیږي. د یو صحیح او کامل شعر په یو بیت کې دومره معناوې پرتې دي چې حد او اندازه ئې نه کیږي لکه د

حمید بابا او رحمان بابا په شعر او یا د بیدل صاحب او حافظ په اشعارو کې. بازاري اشعار که څه هم په زرهاؤ ویل شوي او ویل کیږي لکه کاغذي ګلان بوي او خوند

نه لري. پاخه اشعار د طبیعي ګلانو خواص لري چې طراوت او خوشبوئي ئې تر ابده پورې دوام لري او په هره زمانه کې چې ولوستل شي معطر وي.

شعر دوه قسمه دی یو تکلیفي شعر چې په زحمت سره جوړیږي او بل روان شعر چې شاعر ئې بې له تکلیفه د خپل فطرتي قدرت په استعداد وائي مګر په دواړو

صورتو کښې هر هغه شعر چې د یو پوه شاعر چې د شعر په اصولو او قواعدو باندې پوهیږي او په دغه فن کښې په وارد وي ویل شوي وي هغه ته پوخ شعر ویل کیږي. او په هره زمانه او عصر کښې د ستاینې وړ وي.

د شعر ځینې قواعد او خصوصیات څه وخت دمخه ما له یو دري کتاب څخه پر یو څو پاڼو باندې یادښت کړي دي چې دادی په لاندې ډول ئې په پښتو ژباړه ایکم څنګه چې دغه په مطالعه سره دې د ګرانو لوستونکو معلومات زیات شي.

شعر د یو سلسلې شخصي انفعالاتو او تأثیراتو نتیجه ده. شعر د یو متفکر انسان د عواطفو او احساساتو نمایندګي کوي. شعر په قافیه او وزن سره مشروط نه دی مګر وزن او قافیه د شعر پر حسن او لطافت باندې زیاتوب راولي ځکه یو لطیف نثري عبارت چې موزون وي هغه ته منظوم کلام ویل کیږي او دا معمول د پخوا څخه رسم

ګرځیدلی دی چې د شعر دپاره وزن او قافیه جوړیږي او د موسیقۍ د آهنګو سره هم آهنګ کړ شوي ځکه د عروض او قافیې علم د دغې خبرې دپاره په وجود راغلی دی (ارسطو) لمړنی سړی ؤ چې د شعر دپاره ئې وزن او قافیه مقرره کړه او د عروض د علم په باب ئې لیکنې وکړې.

تر اوسه څوک په تحقیق سره نه پوهیږي چې شعر د کوم وخت څخه شروع شوی دی خو تاریخ موږ ته راښئي چې شعر د نثر سره یو ځای میدان ته راوتلی دی لاکن ښائي په لمړي سر کې په مختلفو رنګو ویل کیدی مګر په تدریج سره تکامل ته رسیدلی دی رزمي او حماسي اشعار څلورزره کاله دمخه د اوستا په سرودو کې وجود درلود.

شعر په هر مملکت کښې د دوی د خلکو د ذوق او د سلیقې په اندازه په څو قسمو ویشل شوی دی:

ارسطو شعر پر ۹ برخو ویشلی دی:

۱ـ حماسه ۲ـ غزل ۳ـ مدح ٤ـ هجو ٥ـ مرثیه
٦ـ هزل ۷ـ جدي هزلیات ۸ـ نوحه ۹ـ فکاهي.

متأخرینو بیا شعر پر ۱٦ قسمو سره ویشلی دی.

۱ـ مدح ۲ـ رثا ۳ـ وصف ٤ـ تصوف ٥ـ اخلاق
٦ـ فلسفي ۷ـ روائي ۸ـ عشقي ۹ـ خمریات ۱۰ـ مناظره

۱۱- حسب حال ۱۲- حماسه اومفاخره ۱۳- شکوا ئیه ۱۵- عتذاریه ۱۵- هجا وهزل ۱۶- معما او د تاریخ ماده .

## مدح

په لغت کی د تعریف په معنی او په اصطلاح کی ادبی شعر ته ویل کیږی چی شاعر یو عالی خصایل دا پشکار او بدیع مضامینو سره خپل ممدوح ته نسبت ورکوی دا رویه له عربو څخه خلکو زده کړه مګر تر اسلام د مخه شاعرانو هم په خپلو قصایدو کی د باچهانو مدحه

کوله .ډیر مدیحه ویونکی شاعران تیر شوی دی چی د هغو له جملی څخه ، حنظله بادغیسی، فیروز مشرقی ابو سلیک ګرګانی، ابو شکور بلخی، ابو المویه سلجی ابو الحسن شهید بلخی د سلطان محمو دغز نوی په مدح کی عنصری او فرخی ، د رسول اکرم (ص) په مدح کښی

سنائی او سعدی ، ا دزمانی په شکایت کی انوری او دا سی نور دی .

## رثا

رثا یا مرثیه هغو اشعارو ته ویل کیږی چی د اسلام د پیشوایانو یا د خپلانو په مرګ او ماتم کښی د تعزیت دپاره د دوی د مصائبو یا فضایلو او مکارمو تذکار یکښی کیږی. رودکی لومړی شاعر دی چی رثائی اشعار ئی ویلی دی .

رثائی اشعار څو قسمه دی : تشریفاتی رثائی شخصی رثائی او مذهبی رثائی لکه د عمق بخارائی مرثیه د سلطان سنجر د اور په مرګ کی، د فخر الملك خاقان مرثیه دزوی په مرګ کی، د امیر خسرو دهلوی مرثیه د مور او د ورور په مرګ کی او د حاجی صاحب مرثیه د ورور په مرګ کی .

## وصف

وصف هغه شعر ته ویل کیږی چی د طبیعی محسو ساتو او جسمانی حالاتو یو ه نوعه طراحی او نقاشی شهودات په هغه کښی ځر ګندیږی چی شاعر د طبیعی مناظر و باد اشخاصو د کیفیاتو ذکر په شعر کی راولی لکه د منوچهر

اشعار چی د باران او باد په صفت کی ئی ویلی دی یا د سعدی اشعار چی د عدالت او احسان په صفت کی ئی ویلی دی او یا لکه د فردوسی اشعار چی د جنګ په باره کی ئی ویلی دی .

## تصوف

هغه کسانو ته متصوف ویل کیږی چی دانزوا او ګوښه ګیری او د ریاضت د مراحلو سره د نس د تر کیی دلاری معنوی او روحانی حقیقی مقام ته د توسل او د رسیدلو دپاره مشغول دی چی منفی جنبه ئی د دنیا څخه اعتراض او قناعت اختیارول دی او مثبته جنبه ئی

سلوك او پلټنه د اخلاص مراحلو ته قاطیدل او د الهی عشق مقام ته رسیدل دی چی په دی سلسله کی معروف متصوف بایزید بسطامی او شیخ فرید الدین عطار او شیخ جلال الدین رومی چی مثنوی ئی په (۷) هجری قرن کی لیکلی دی او حافظ چی په ۸ م قرن کی شعر ویلی

دی او خواجه عبدالرحمن جامی ۹ او منصور حلاج او ابو سعید ابی الخیر او خواجه عبدالله انصاری رحمته الله علیهم دی.

## اخلاق

هغه شعر ته ویل کیږی چی شاعر بی له شخصی احساساتو څخه د عمومو خلکو د اخلاقی سطحی د لوړو دپاره شعر و وائی لکه د سعدی او نظامی اشعار .

## فلسفی

هغو اشعارو ته ویل کیږی چی د فلسفی مسایلو اپاره ویل کیږی لکه جبر او تفویض او تدبیر او اختیار او توکل او تسلیم او رضا لکه د عمر خیام او مولوی فلسفی اشعار .

## روائی

هغه اشعارو ته ویل کیږی چی یو ه تاریخی واقعه ئی بیان کړی وی لکه ملی، حماسی، مذهبی ، او عشقی روائیان . د مثال په ډول تر اوسه زیږدی روائی لکه شاهنامه عشقی روائیات لکه لیلی و مجنون . تمثیلی روائی لکه مثنوی د شیخ عطار منطق الطیر او د سنائی صاحب قصایددی .

## عاشقانه

عشقی اشعار هغه شعر ته ویل کیږی چی د عشق او محبت دپاره ویل کیږی او غالباً غزلیات د دغی شیوی دپاره دی .

«نوربیا»

دژوندانه لار:　　　　　　　　　　　　　دم. ناصر (نصرت) ژباړه:

# موږ او زموږ دوستان

لکه څرنګه چي موږ دژوند په ورځني جریان کښي له خپلو دوستانو، اشنایانو او ورانږدي کسانو د زیاتي دوستي توقع او انتظار لرو، همدوی دي چي زموږ تر ډېرمنانو او بد خواهانو

زیات زموږ دخوابدي او کدورت موجبات برابروي. یو هلکي په ویل:

«زمامور او پلار یوه ورځ بې جنګ او جدله نه تیروي» ښايي چي دغې ښځي او میړه دي په کلو، کلو ژوند او ګذاره سره کړي وي او بل په خوی او عاداتو

هم سره خبر وه، لیکن دغوی په قول ئې سره له دې چي یو له بله خوراګران وه بیا ئې هم نشوای کولای چي یو سهار یا ماښام دي بې جنګه او دعوه تیر کړي.

هوا، موږ هم زیاتره وخت له قسم، قسم خلکو څخه تکلیفونه او آزارونه ګورو، خو بیا هم په سلو کښ ورسره کورو. لیکن کله، کله بیا

په یو نه څه بهانه له صمیمي دوستانو او نږدې کسانو څخه مایوس شو. یو ه کوچنۍ بې اعتنائي یا سهوه ئې په خپل زړه کښي ټینګه ساتو.

زړ، زړ خوا بدتیا او بې اندازې خواهشات دي چي هر وخت دده دو نفر وتر منځ ددوستي روابط او شیرینې چي ښايي د تل لپاره په سوله او صفا کښي وي له منځه وړي. ددې قسم اندک

دنجیو او نا راحتیو علت دی ښايي چي زموږ له هغو نکاتو څخه بې خبر تیاوي چي د مهر، اخلاص او دوستي د ټلپیدو سبب کېږي.

موږ زیاتره وخت د خارجي صدمو او تکالیفو په مقابل کي صبر او استقامت کوو څکه چي بله چاره نه لرو، لیکن که دیو ګران دوست او ملګري له خوا موږ ته یو ه صدمه راورسیږي او یا یو

ناوړه حرکت څخه پېښ سي ژر له ځایه غوړځیدلی د شکایت او مخالفت ژبه خلاصوو.

دا په کار نه دی او کوم روابط چي ښايي زموږ د نیکمرغۍ سبب سي دې ته

بربېږدو چي ددغسي ناچیز و پېښو په غبار سره آلوده سي. موږ باید تل دا په یاد ولرو له هغو کسانو سره ژوند، ګذاره او ګډون چي لیري، توب او نیستي ئې زموږ دپاره سخته او ورته ده دا سي لار چ

چاري وسنجوو چي په هغه وسیله و کولای شو چي هر کله د اخلاص، محبت، یووالي او دوستي موجبات برابر، د کدورت خوابدې او دښمني علت او سببو نه ورک او په حافظه کښي هیڅ ځای ورنه کړو دهمدې منظور لپاره موږ ته ډېر ساده

وسایل ښته چي د بده مرغه له هغو څخه په غفلت کښي یو دمثال په توګه ډېر کوچنی شیان او ساده خبري دي چي که هغه موږ همیشه په ورځني ژوند او دوستي کښي په کار واچوو د زیاتو خلکو د زړه د خوښي او نشاط سبب ګرځي مثلا: په یو مناسب وخت چا ته ګل ډیسو او حتی بې مناسبته هم د ګل ورانډي

کیدل یو ه خو شحالي لري او... داسي نور ...

وائي چي دیوې ښځي ګلان خوښ وه مګر میړه ئې دانیوا نو وس نه درلود، یو ه شپه ئې ماینه په داسي حال کښي چي د ډوډۍ

خوړلو پر میز ناسته وه ناڅاپه متوجه شوه چي د میز د منځ په ګلدان کښي د ښکلو ګلانو یو ه ګیډۍ پرته ده، چي ښه ورځیر، شوه وئې لیدل چي هغه مصنوعي

ګلان دي. ورو سته معلومه شوه چي میړه ئې هغه د ښکلو مصنوعي ګلانو ګیډۍ د خپلي ښځي د خوښۍ په خاطر رانیولي، څو چي دی هره ورځ مجبوره نه شي چي کورته

مځي تازه تازه ګلان له ځان سره یوسي.

د ښځي که څه هم مصنوعي ګلان چندانې خوښ نه وه، خو کله چي په ئې د خپل میړه له توجه او تدبیر څخه بیان کاوه، علاوه

پر دې چي د خوښي او نشاط حالت په یکښي څرګندو د میړه د تشکر تقدیر د حس د پر ښه، ښه هم وه.

موږ هر څو ک هر چېري چي یو کولای شو چي هره ورځ په یو ه کوچنۍ

او ساده کار سره د خپلو دوستانو او نږدې کسانو لپاره د نیلو احساساتو او عواطفو یو ه ذخیره وبرېښوو، ځکه همدغه احساسات او عاطفي دي چي که د مطلب

پاته په ۱۲ مخ کي

دمحمدعظیم «هوشمند» څیړنه او لیکنه:

# څرنګه کولای شو

# دمخه له دې چې نګرانی او تشویشونه

## موږ له پښو واچوی، هغه خپله له‌منځه یوسو ؟

هغه شپه‌می هیڅکله نه هیریږي چې څو کاله پخوا، زمایو زده کوونکي چې د شپې په لیسه کښې ئې درس وایه د خپلې پیروزۍ او بری قصه ئې خپلو همصنفیانو ته بیانوله چې څرنګه پر پیښایو نګرانیو، تشویشونو او غمو باندې غالبه شوم.

هغه موږ ته بیان وکړ چې څرنګه دوه وزره په دوو لویو بلاګانو باندې اخته شو:

لومړی بلائې یوه ډیر ګرانه لور چې پنځه کلنه وه مړه شوه او وروسته له دوو میاشتو بیادلور خاوند شو، چې هغه هم دخپل عمر په اتمی سپار له دنیا څخه ولاړه.

دنوموړی دا دوه مصیبته دده له قدرت او توان څخه ډیر لوړ وه، هغه پخپله خپل حالت داسې بیاناوه:

(نه‌می خوب نه‌می آرام درلود خواړه‌می له ستونی نه کښته کیدل اعصاب‌می بدې اندازه تحریک شوی وه چې ځان ویما یعنی «په نفس اعتماد» په‌ما کښې مړ شوی و، څو ډاکترانو ته ورغلم، مګر دهغوی دا حل بې تاثیره وو ما داسې فکر کاوه چې یوه آهنی تابوت کښې بندې شوی یم او هر ګړی د تابوت براخوالی کمیږی او پر ما فشار راوړی).

که چیرې تاسو په ژوند کښې په کومې عصبي ناروغتیا او یا غم باندې مبتلا شوي یاست، بیا نو کولای شی چې د نوموړی حالت او غم څرنګوالی ځانته مجسم کړی.

ده‌وویل: (دخدای شکر دی چې یو څوارلس کلن زوی را پاته شوی او دمدغه زوی‌می لوی مشکل راحل کړ).

دیوې ورځې په ماپښین چې دغمونو په دریابو کښې ډوب وم دغه زوی‌می راته راغی او وې ویل: (پلاره! غواړم چې د یوه کوچنۍ کښتی راته جوړه کړې).

که رښتیا ووایم په هغه‌وخت کښې‌می د کار د کولو هیڅ حوصله نه درلوده، اما زوی‌می دومره ټینګه شو مجبوردې کړم څو پدغه کار پیل وکړم.

ددې کښتی په جوړیدو باندې درې ساعته تیر شول، کله چې کار ئې پای ته ورسید، پوه شوم چې پدې وروستیو میاشتو کښې زما د هوسائی او روحی کرارۍ یوازنی وخت یوازې او یوازې همدا د کښتیو جوړولو وخت و.

دغه کشف زه له غم او چرت وهلو (نګرانی) څخه خلاص کړم او وروسته له څو میاشتو دلمړی ځل لپاره ما وکړای شو چې سم فکر وکړم وپوهیږم او دا راته ثابته شوه، کله چې انسان په یوه کار اخته وي، هغه کار چې فکر او نقشې ته اړتیالری نو فکرونه ډیر لږ په هغه کښې نفوذ کولای شی، په هغه لحظه کښې د لرګی کوچنۍ کښتۍ زما توجه ځانته جلب کړه، او نګرانۍ ئې له ما څخه لیرې کړې. وروسته زه دې نتیجې ته ورسیدم چې د نګرانیو چرتونو، تشویشانو او غمونو څخه د خلاصون لپاره باید هرومرو ځان په یوه کار لګیا کړم.

وروسته‌می یوه شپه کاغذ او قلم راواخیستی او دخپل کور په څونو کښې‌می په قدم وهلو، کتلو او لیدنو پیل وکړ ما هلته هغه نیمګړتیاوې چې په تعمیر کښې وی، او کوم شیان چې ورته لازم وه، هغه شیان‌می په کاغذ باندې نوټ کړل، چې د هغو نیمګړتیاؤ شمیر په یوه هفته کښې (۲۴۲) ته ورسید، پدې دوو وروستیو کلو کښې‌می د تعمیر ټولی نیمګړتیاوې پوره کړې، او په ټولو کارو چې‌می پیل وکړ اوس په داسې اندازه مشغول او په کار لګیا یم چې د چرت وهلو او نګرانیو دپاره هیڅ وخت نه لرم.

وینسټون چرچیل همدغه عقیده

(۵ مخ)

دزړلو ده او د جنګ په ډېرو بحراني او سختو ورځو کښې ئې د شپې او ورځې ۱۸ ساعته پرله پسې کار کاوه او هر کله چې به پوښتنه ځنې وشوه چې:

هغه دروند بار او ستر مسئولیت کوم چې ستا پر اوږو پروت دی، آیا د هغه په باب ته د سو لو کښې نګران نه ئې؟

هغه به په جواب کښې وویل:

پدې اندازه په کار اخته یم چې چرت وهلو، نګرانیو او تشویشو ته هیڅ فرصت نه لرم.

پاستور مشهوره پوهاند د کتابخانې او لابراتوار له آرامې ځخه یادونه کوي.

ددې علت دادی چې په کتابخانو او لابراتوارو کښې سړی د خپل ځان په باره کښې دومره ډوب تللی وی چې د چرت وهلو لپاره هیڅ موقع نه پیدا کېږي. لدې جهته هغه پلټونکي کسان چې په ازمایښتي کارو لګیا وي ډېر لږ په روحي او عصبي ناروغیو او تشویشاتو باندې اخته کېږي. ځکه چې اضافي وخت نه لري.

شاید تاسو محترمو لوستونکو ته به دا درته تمامه شي چې څرنګه ساده مشغولیت سړی له تشویشاتو او نګرانیو ځخه ژغوري

پداسې حال کښې چې دا موضوع د روانشناسي په یوه اساسي او کلي قانون پورې اړه لري. او له ډېرو پخوانیو کلونو راهیسې دا موضوع د روانشناسانو د تائید وړ ګرځېدلی ده.

(د لومړي مخ پاته)

## د خپلواکۍ ساتنه

اسلامي دیانت، شاهدوستي، دلوړتیا پر لوری هڅه کول او د هیواد د مسعودتیا او پرمختګ دپاره فدا کاري او ګټور فعالیتونه غواړي.

هو! موږ افغانان ټول خدای پرستان یو، د وطن او پاچا سره مینه زموږ په وینه کښې اختېل شوی او د افغاني طبیعت جزء ګرځېدلی ده او هیڅ طاقت نشي کولای چې موږ د خپلواکۍ د نعمت نه محروم وګرزوي او هیڅوک دا وس نه لري چې زموږ په افکارو کښې د وطندوستي جذبه کمزوري او د افغانیت او اسلامیت نه پرته نوري مفکورې را پیدا کړي.

موږ افغانان او مسلمانان یو پردغه مفکوره پایو، ځان ته خپل ملي ژوند جوړوو، افغانستان د افغانستان دپاره غواړو، د خدای، وطن او پاچا په مینه ژوندي او پرمخ روان یو، افغانستان د خپلې ملي مفکورې او افغاني ایډیالوژۍ دلارې پرمخ بیایو او د بل هیچا د ترقي د مفکورې تر تسلط لاندې نه راځو، دا ده زموږ ملي فیصله او ولسي شعار او د دغې افغاني مترقي فلسفې په سیوری کښې به زرونو نور کلونه په خپلواک او مترقي افغانستان کښې زموږ راتلونکي مترقي نسل او سیدل غواړي. «اېو بې»

ددې قانون په اساس هرڅومره چې سړی روښنفکر وي بیاهم نشي کولای چې په عین زمان او یوه لحظه کښې خپل فکر دوو شیانو ته راوګرځوي، که پدې باور نه لرئ خپله کولای شئ چې بخپل ځان باندې دا ساده ازموینه عملي کړئ:

داسې اټکل وکړئ چې په یوه آرامه چوکۍ مو ډډه اچولې ده، خپلې سترګې پټې کړئ او په یوه لحظه خپل فکر د امریکا د آزادۍ د مجسمې ته راوګرځوئ او همدغه رنګه په همدغه لحظه کښې د سبا ورځې لپاره خپل ورځني پروګرام وسنجوئ.

پوهېږئ که هرڅومره کوښښ وکړئ او پر ځان باندې زور راچوئ، بیاهم نشئ کولای چې په همغه وخت کښې د دوو موضوعاتو په باره کښې فکر وکړئ او تصمیم ونیسئ.

دا موضوع د بشري احساساتو په هکله هم صدق کوي، ځکه موږ نه شو کولای په عین زمان او آن واحد کښې په ډېره ګرمۍ او شور سره او همدا رنګه له غمونو او نګرانیو سره واوسو.

د انسانانو مغز په عین وخت کښې نشي کولای چې زیات له یوه ډول احساسه ځخه بل ډول احساس قبول کړي.

د یوه احساس دا خایدل، د بل احساس د خارجیدو او وتلو سبب ګرځي. د همدغه ساده کشف په برکت ؤ چې نظامي روانشناسانو وکولای شوای څو جنګي عسکر و ته له روحي او عصبي ناروغیو ځخه نجات ورکړي.

کله چې جنګ پای ته ورسېد یوه ډله عسکر د پسیکونوروتیك (روحي او عصبي عارضې) په ناروغۍ اخته شول ، نظامي

رواني ناروغانو د دغوی د جوړېدو لپاره یوازنۍ او یوازنۍ یوه دوا تجویز کړه، او هغه عبارت د کار له سرګرمۍ او مشغولیت څخه وه.

دغه جنګي ناروغان چې د عصبي تحریك په مرض اخته شوي وه، پروګرام ئې داډول ترتیب شوی ؤ چې یو ګړی هم ددوی د بیدارۍ وخت بېله سرګرمۍ او فعالیت څخه په تېره بیا د ښار څخه د باندې، هغه مشغولیتونه لکه ماهیګیري، ښکار، توپ بازي، عکس اخیستل، باغباني، نشا څخه هیڅکله په سکوت نه تیریده او مؤظفو ډاکترانو نوموړو ناروغانو ته دا موقع نه ورکوله چې د هغوی فکر د جنګ د ډګر بیرونکو، او وحشتناکو صحنو ته وګرځي.

اوسني رواني ناروغان د دغې ناروغۍ د علاج یوازنۍ لار د همدغې ناروغۍ د ناروغانو مصروف ساتل او په کار اچول ګڼي.

دا باید وویل شي چې دا لار د اوسني عصر د علماو د څېړنې محصول نه دی بلکې ۵۰۰ کاله د مسیح د میلاد ترمخه یوناني ډاکترانو د دغې ناروغۍ علاج په اوسني شکل کاوه.

موږ خلکو ته اسانه ده کله چې په کوم کسب لګیا یو او یا نورو سره په صحبت اخته یو کولای شو چې له ځانه څخه نګرانۍ او چرت وهل لیري کړو، مګر هغه وخت چې له کاره خلاص شو، باید خوشحاله واوسو، بالعکس بدې وخت کښې د نګرانۍ او تشویش توره بلا خپله ګرځېږنه څېره موږ ته ښکاره کوي، او موږ دې ته مجبوروي چې د خپل ځان څخه پوښتنه وکړو چې:

بدې ژوند کښې به تر کومه کومه حده پرمخ ولاړ شو؟

د نیکمرغۍ مخ به وویننو که به؟

آیا زما سر به هم، زما د ملګري په شان طاس شي او که څنګه؟

هوا کله چې موږ کوم مشغولیت ونه لرو، زموږ مغز د خلاء او خالي فضاء حالت ځان ته اختیاروي، د نګرانیو او تشویشاتو لښکر پر موږ هجوم راوړي.

جارج برنارډشاو څومره ښه ویلي دي:

زموږ د بدبختۍ او بېچاره ګۍ شروع د هغه فارغه او بېکاره وخت څخه ده کوم چې ئې موږ د خوشبختۍ او بدبختۍ په فکر کښې تیروو.

نو لازمه ده چې بېځایه خپل ځان بېځایه افکارو ته تسلیم نه کړو، باید لستوڼي را بورته او په کار پیل وکړو چې په نتیجه کښې د وینې جریان په حرکت راځي، او ماغزه مو په کار او فعالیت لوېږي، او ډېر ژر د دغه مثبت عکس العمل موږ د چرتو او نګرانیو څخه باسي.

نو کار وکړئ او په کار مشغول شئ، چې یوازنۍ او ډېر مؤثر درمل د ټولو نګرانیو او تودو بدبختیو یوازنۍ او یوازنۍ همدا کار دی.

دغو نو، نګرانیو، تشویشاتو او ناراحتیو د زنځیرو د ماتولو لپاره همدغه دستور په یاد ولرئ او عملي ئې کړئ چې:

(خپل وخت کار ته وسپارئ، ځکه هغه کسان چې په نګرانیو، او تشویشاتو اخته دي خپل غم باید په کار کولو کښې له یاده وباسي، او که ددې فارمول څخه استفاده ونه کړي نو هرومرو به د ناامیدۍ په ګرداب کښې ډوب سي).

نوي اختراعات:

د «انټي یوال» ژباړه:

# دلارې د پیدا کولو آله

د سامه جوړولو د کمپنۍ متصدیان چې د امریکا په یوه ایالت کښې واقع ده د یوې داسې آلې په جوړولو بریالي شوي دي چې دلارې د پیدا کولو د پاره بوره مرسته کوي او د موانع څخه سړی ساتي. دا آله د یوه کوچنۍ لاسي بیټرۍ په اندازه ده چې په لاندې ډول استفاده ځنې کیږي:

۱- کښتۍ وانان کولای شي چې د غبار او تاریکۍ په وخت کښې لارې پیدا او د لیرې واټن څخه موانع ومومي او ځان بدې ډول د خطر څخه وژغوري.

۲- ړانده خلك کولای شي چې په سړکانو او واټونو کښې د هغه څخه استفاده وکړي او د خپلې لارې موانع پیدا کړي او ځان د خطر څخه خلاص او سمه لاره ومومي.

دا آله د بیټرۍ په قوه کار کوي او د موانع په وخت کښې یو ډول انعکاس

(نور په ۱۰۰ مخ کښې)

دوکتور محمد انور نوزاد:



# دیابت
# یا د شکرې ناروغي

اصلاً دیابت پر دوه ډوله دی ۱: هغه دیابت چې د غده نخامیه د اختلال د افرازاتو څخه پیدا کیږي چې هغه دیابت ته بې مزه دیا انسپید دیابت ویل کیږي چې د ا په زرق کولو د وازوپریسین له منځه ځي او اصلاً د اصلي دیابت په جمله کې نه راځي اما ددې سببه چې ناروغه په دې ناروغۍ کې هم ډېرې بولې کوي، نو د دیابت نوم ئې اخیستی دی

او بې مزه ددې سببه ورته ویل کیږي چې په اصلي دیابت کښې د ناروغ ادرار خوږ دی یعنې بوره پکښې وي او د بې مزه دیابت په بولو کې بوره نه اخراجیږي

ددې سببه دیابت بې مزه ورته ویل کیږي.

اساسي د یابت یا دیابت میلیتوس چې د انا روغي اصلاً د اختلال څخه د میتابولیزم بازول

دوجود منځ ته راځي، په عمومي ډول سره دوه ډوله وي یا چاق یا ډنګر او یا د کوچنیانو یا کاهلانو، په هر صورت دیابت هغه

ناروغي ته ویل کیږي چې ځانته دغه اعراض لري:

۱- ډېر خوړک کول یا پولي فاژي.

۲- ډېر او به څښل یا پولي دیپسي.

۳- ډېرې بولې کول یا پولي یوري.

دغه درې اعراضه د دیابت درې بابي بلل کیږي دا ناروغي عموماً بنیه دي او موروثي بلل کیږي او ددوا ئت په ډول د متابولیزم په علم کې بیان سوي

دي او نن ورځ په مدني دنیا کې یو زیات شمیر انسانان په دې ناروغۍ اخته دي او په دې اساس دغه ناروغي د ریسیسیو په شکل یعنې په خفي توګه پر مخ ځي نو په نننۍ دنیا کې په تیره بیا

په مدني هیوادو کې دغه ناروغي په سلو کې دوه لیدل کیږي او پوهان دې ناروغۍ ته ډېر متوجه دي او د دنیا یو نوی پرابلم بلل کیږي دا ناروغي د قدیمو څخه موجوده وه او د دې ناروغۍ

اعراض پوره ته بیان سوي دي عرضه دي او دا اعراض د دې سببه پیدا کیږي چې اصلاً پانقراس چې د لانګرهانس حجراتو په واسطه انسولین افرازوي د نامعلوم

علتونو له کبله خپله وظیفه په صحیح ډول سر ته نسي رسولای او په معینه اندازه انسولین چې د شکرې د ځای ترځای کولو او سوځلو د پاره مواد

لازم دي نه وي نو له دې سببه شکره په ینه کې نه ذخیره کیږي بلکه په وینو کې تر خپل

نورمل اندازې اضافه کیږي نو نورمل مقدار د وینو د شکرې د او یا څخه تر یو سلو شلو ملي ګرامه پورې دی په سلو سي سي وینو کې

ټاکل شوی دی البته د ینځه څخه پیا تر له سو ملي ګرامو پورې لا هم د اندیښنې وړ نه بلل کیږي او که تر یو ورتنی مقدار شکره په وینو کې

زیاته کیږي نو هغه په وخت کې د شکرې د ناروغۍ ابتدائي اعراض شروع کیږي ډېری او په ددې سببه ناروغ څښې چې د شکرې مقدار په وینو کې ډېر سي او د وینو غلظت اضافه سي

او زهري مواد په وینو کښې پیدا کیږي نو ا: په د وینو غلظت کموي او په عین حال تنده چې د استیوني موادو د پیدا کیدو څخه په وینو کې منځ ته راغلي ده

دفع کي او ډېر ادرار ددې سببه کوي چې زیاته شکره باید د زهري موادو سره د وینو څخه

وایستل شي نو د وجود د طبیعت کوښښ کوي چې د ادرار په واسطه زهري مواد د وجود څخه سره د

زیاتې شکرې چې په وینو کښې ده وباسي او ډېره ډوډۍ ددې سببه خوري چې هر څو مرۍ چې دي ډوډۍ خوري کاربن هیدرات

د وجود د پوګانو ته نه رسیږي بلکه د وجود څخه د ادرار د لارې وځي نو مجبوري هره دقیقه آرزو د خوړاکي شیانو مخصوصاً کاربن

هیدرات لری بهٔ ذې ناروغی کې د وینو بیلانس خرابیږي بعضې هغه مواد چې په طبیعي صورت په یوه اندازه کې موجود دي ډیریږي چې هغه زهري مواد بلل کیږي لکه استیون نو د دغه سبب د دیابت د نارو غانو د غولې دوره استه سبب بوي ځي ، یعنې وویل چې په طبیعي صورت

کې وینه ځان له یو بیلانس لري که د شکرې مقدار د وینو ترخپل بیلانس ډیر زیات سي نو د کوما حالت «بیحالی» نارو غه ته پیدا کیږي د دې حالت کوما هیپر ګلیسیمیک یا د شکرې د زیاتې کوما ئې بولي او که

د شکرې مقدار تر نورمل حالت په وینو کې کم سي هم کوما یا «بیهوښي» پیدا کیږي چې دې ته کوما هیپو ګلیسیمیک وائي یعنې هغه بیهوښي چې د وینو د شکرې د کمې د لحاظ پیدا سوي ده .

البته دا ډول کوما عموماً د تداوي په وخت کې چې دانسولین په ذریعه کیږي پیدا کیږي . نو لوی قانون دا دی چې د شکرې د نارو غ باید همیشه قند په جیب کې وي ولې کله چې د پیچکارۍ په سبب دفعتاً مقدار د شکرې په وینه کې کم سي نو باید سمدستي د هغه قالبو قند

څخه استفاده و کې او که «کوما» یا بیهوښي د قند د زیاتوالي څخه پیدا شوي وي باید سمد ستي انسولین چې وژونکي د شکرې موادو دي ورسو ري او قوه کوي ئې د دا کار تر نظر لاندې پیچکاري سي .

انسولین هغه ماده ده چې په طبیعي صورت سره د پانقراس د غدې څخه افرازیږي .

پانقراس د یوې غدې څخه عبارت دی چې د اثنا عشر ، د چو کات په دوهمه برخه کې دی نن ورځ انسولین د پانقراس د غدې څخه اخراجیږي څو کاله د مخه یو ډول

انسولین موجود وو چې هر څو ساعته وروسته به پیچکاري کې دی خو نن په بیل بیل ډول سره تهیه سوي دي چې د یر و تمین ژ نګ انسولین په نامه یادیږي چې په هر و ۱۸ یا ۲٤ ساعتو کې یوه پیچکاري کفایت کوي البته نوري

کیمیاوي دواوي د ګولي په شکل هم په بازار کې سته د راستینون هو خست په نامه سته چې ورځې د ۳ دانو څخه تر ٦ دانو پورې استعمالیږي او نوري دواوي هم سته سلفو نیل یوري او داسې نور .

د دیابت نارو غانو ته د یوري په عوض کې زیاتره یو ډول ګولي چې سکرین نو میږي ورکول کیږي دا بوا ځې د دې د پاره چې نارو غان ځان په خطا باسې ولې دا ګولي خوږې دي خو بوره نه لري نارو غ فکر کوي چې بوره مې وخوړه .

## د تشخیص صورت :

د نارو غۍ تشخیص په ښه استجواب اوله لری په تیره بیا د دې عرضه باید و پلټل سي لکه ډیر تبل ، ډیر خوړل ډیری بولي کول نو په دا سې حالتو کې باید لومړی د نارو غ ادرار معاینه سي او په ادرار و کې د مریض باید قندي مواد و پلټل سي خبره دا ده چې په طبیعي صورت کې

ادرار ځان له یو مخصوص کیمیاوي ترکیب لري چې شکره په هغه کې نسته هر وخت که د نارو غ په بولو کې د قندي موادو بروز ولیدل سي نو دا معلو میږي چې نارو غ په دیابت اخته دی او یا اخته کیږي ، په پیشر فته

پیښو کې لازم بلل کیږي که د وینې د شکرې اندازه و ټا کل سي د دیابت تشخیص ښه تر ا کیدای سي ، د دیابتیک نارو غان د خوړلو ښه اشتها لري او بعضاً د شرموښ اشتها ورسره وي یعنې مړیده نه لري .

## تداوي :

د نارو غۍ د اعراضو او لابراتواري معاینا تو له مخې تداوي شروع کیږي هفته په هفته د نارو غ ادرار معاینه او د شکرې مقدار تعینیږي او په میاشت یو ار یا په دوو میاشتو کې یو ار د وینو د شکرې مقدار معلو میږي او نارو غ باید تر کنترول لاندې وي پر دوا سربیره باید

د رژیمي تداوي لاندې هم و نیول شي چې دا رژیم د شکري موادو د منع کیدو څخه عبارت دی د دیابت نارو غ په عمومي ډول باید وریجې او وچه ډوډۍ او نور خواږه شیان و نه خوري په تیره بیا د دغو موادو سره باید احتیاط و کې :

۱ : وریجې

۲ : پټاټې

۳ : خوږې میوې (انګور ، زردالو)

ولې دا مواد له کیمیاوي نظره قوله هیدرات دو کاربن له خاندان څخه دي وریجې ، پټاټې او نشایسته لري چې په وجود کې یو مالیکیول د هغه په دوو مالیکیو لو کار کوي یعنې قند یا هغه هید رو کاربونونه چې ذوب کاربن لری تبدیلیږي .

د ديابت ناروغانو ته بايد پروتيډي يعني ګوښتي مواد ورکړه سي او هم دا ډول وسا به کم روغنه او ميوې چې خوږه والي ئې ډېر نه وي ورکړه سي البته که د

قند مقدار په وينو او په بولو کې لږ وي کېدای سي چې په هفته کې يو دا روږيجي او لږ وچه ډوډۍ هم وخوري اما په عمومي ډول د ديابت د ناروغانو خوراک

ګوښتي مواد او حبوبات او کم شيرينه ميوې دغو ښوا و به او سا به ټاکل شوي دي.

په عمومي ډول سره: نسانان بايد اضافه قندي مواد او شحمي «روغني» مواد په يوه تعادل د وجود د ضرورت استعمال کې او په دغه تعادل کې پروتيډي مواد

هم په خپله برخه کې ځای لري په منځني ډول هر انسان ته دوه ځي دوه زره پنځه سوه تر درې زرو کالوري په ٢٤ ساعتو کې اړتيا سته چې البته د ځينو شرايطو

له کبله کم او زياتېږي او يوه ګرام شحم يعني ليفيدي مواد و څخه (٩) کالوري پيدا کېږي او يو ګرام پروتيد او کاربن هيدراتو څخه څلور کالوري پيدا کېږي

زموږ ورځني خوراک معلوم دا دی د دغه درې ډول يو د تنيو مواد و څخه متشکل دی د ميوې او سابه و ډېر زيات يد وسره که په يو د تنۍ

مواد د کې يو تعادل وساتل سي په تيره بيا که عمر تر څلو يښتو کالو ډېر بيږي د مالګې، خوږو او غوړو سره بايد ډېر احتياط وسي

ولي چې د ديابت او قلبي ناروغيو د پيدا کېدو امکانات زيات سته په آخر کې خپله دا مقاله چې د ديابت د ناجوړۍ په باره کې ده او سې کال په بين المللي سويه د دغه ناروغۍ په باب توضيحات ورکړه شوه پای ته رسوو او خدای دی وکړي چې زموږ ګران او په زړه پورې ويونکي د دې مقالې څخه صحي ګټه واخلي.

په درناوي

د المانی منابعو څخه: ژباړه:

# د پښتورګي

## د ډبرې ضد کپسول

د مهمو او خطرناکو ناروغانو د مجادلې او درمل د کشفېدو لپاره يو اکتشافي ټيم د دوو کتورو «البرټ نيمن» او د دو کتور «اتو بريز» په مشرۍ چې د لويديځ المان په هامبورګ کې په فعاليت الکيادي دا وږدې مودې څېړني تجربې او ازمايښت وروسته د مليونو ډالرو په لګښت د يو داسې نوي درمل په کشف قادر شو چې د هغه په کاراچولو دلارې د پښتورګي ځاور ډوله ډبرې د منځه وړل کېږي.

دغه درمل د کپسول په شکل تهيه شوي او ژر به د ناروغانو د استفادې وړ وګرځي.

دغه کپسول د امونيم، مګنيزيم فسفات او کلسيم د ډولونو لپاره جوړ شوي دي، د دغه ډول ناروغي تراوسه پورې يوازې د جراحي عمليا تو او يا د پښتورګي د ډبرو بولو په واسطه د منځه تلې، خو په آينده کې به د دغو کپسولونو د استعمال دلارې د پښتورګي د ډبرې علاج وشي.

نوي شيان: ژباړه:

# مصنوعي واوره

په مونشن کښې د المان د لينده کمپنۍ په دې وختونو کښې يو ماشين جوړ کړی دی چې مصنوعي واوره توليدوي.

وروسته تر دې د دغه نوي ماشين په کاراچولو سره هغه اند يښنه د منځه ځي چې د سکي د سپورټ لوبغاړي د کافي واورې د نشتوالي له کبله لري.

امريکا دغې کمپنۍ ته د دا ډول ډېر شو با يو ماشينونو فرمايش ورکړی دی.

د سکي لوبه هغه وخت ډېره په زړه پورې وي چې په زياته اندازه واوره موجوده وي نو که وروسته تر دې په کوم ځای کښې د واورې کموالی واحساس شي د دغې نوي ماشين په واسطه مصنوعي واوره توليدوي او دغه مشکل د منځه وړي.

لکه چې څرګنده شوې ده دغه مصنوعي واوره نسبت طبيعي واورې ته ښه او په زيات مقدار د منځ ته راځي.

د مصنوعي واورې د توليد ولو د ماشين کار دا ډول دی چې زيات يو ډېر توليدوي او دغه يو ډېر ونه د نورو دستګاوو په واسطه د اوبو سره ګډوي او د جټ الوتکې په واسطه ئې د سکي د ځمکې دوړز شو نو په مرکز باشي او په واوره بدلېږي.

(د ٧ مخ پاته)

## دلارې د پيدا کولو ...

کوي چې د هغه سره سم د آلې څخه مخصوص آواز اوريدل کېږي او هر څوک چې دغه آله يې په لاس کښې وي د هغه د ټک ټک د آواز څخه پوهېږي چې پر مخ وا کښې کوم خطر سته.

د دې آلې د زده کړې د پاره څه وخت په کار نه دی ځکه ډېره بسيطه ده او په څو دقيقو کښې سړی کولای شي د هغه د خصوصياتو سره آشنا شي.

د خارجي منابعو نه:

# دخدابخش کتابخانه

## د اسلامي علومو د نوادرو خزانه

دا کتابخانه د خپلو ډېرو عربي قلمي کتابونو له کبله جهاني شهرت لري او د نوموړې ویرې به پای کښې یې د اسلامي علومو د کتابخانې او روزنې د ځای حیثیت غوره کړي.

ددغې کتابخانې د پرانستلو په وخت هغه د خدابخش په نامه یاده شوه او دا کار زیاتره د یوه داستان سره شباهت لري، او لکه چې دا داستان د پلار خوبو چې زوی ته یې میراث پرېښود تر څو چې زوی یې هغه ته د عمل جامه واغوستله.

د خدابخش پلار چې محمدبخش نومېده او د هند د بهار د ولایت د مداقعي وکیلو له ډېر بخوا ځخه یې مینه درلوده چې یوه اسلامي کتابخانه پرانیزي، له دې کبله یې هڅه وکړه او خپلې زیاتې روپۍ یې د قلمي کتابونو په موندلو او غونډولو ولګولې او په پای کښې یې څوارلس سوه قلمي کتابونه سره راغونډ کړل.

دا سچیداننده سېینا (د بهار د ولایت د ممتازو معاصرینو) په نامه په خپل کتاب کښې خدابخش یو د ستر شخصیت خاوند معرفي کړی دی.

خدابخش په ۱۸٤۲ میلادي کال په چوپره کښې زېږېدلی او خپل تحصیلات یې په کلکته کښې سرته ورسول او د څو کلونو مطالعو او څېړنو څخه وروسته خدابخش د یوه قانونپوه په حیث وګرځېد او د خپلې عملي دورې لپاره د پټنا په ښار کښې مقرر شو.

نوموړی په خپله وظیفه کښې ډېر بریالیتوب ترلاسه کړ او په پای کښې په حیدرآباد کښې د عالي عدلي نظام د محکمې د رئیس په حیث مقرر شو او هغه وخت انګرېزي حکومت د خدابخش د عامو خدمتونو له کبله ده ته ډېر القابونه ورکړل.

خدابخش د اسلامي ادبیاتو سره ډېره مینه درلوده او هغه ممتازه علمي مؤسسه یعنې کتابخانه چې ده منځ ته راوستله په خپله د خدابخش د عالي نبوغ او لوړې قریحې ښکارندویه ده.

دې خود خواه نه نو ځکه یې غوښتل چې خپل نوم پر کتابخانه کښېږدي نو کتابخانه د عامې خاوري کتابخانې په نوم وګرځېده خو خلکو دغه نوم و نه مانه او دغه نوم یې ورباندې کښېښود، او اوس دا کتابخانه په هند او نوره نړۍ کښې خالص د خدابخش په نامه پېژني.

لکه چې هندي نامتو مؤرخ جادونات وایي:

«ددې کتابخانې ډېری نادرې او قلمي نسخې غالباً د ډیلي د مغولو د حکمرانانو له کتابخانو څخه راغونډې شوي او د مغولي امپراتورۍ له سقوط نه وروسته دلته راوړل شوي دي.

وایي: چې خدابخش یو عرب چې په کتاب پېژندلو کښې یې پوره مهارت درلود په خپله شخصي کتابخانه کښې مقرر کړ او هاغه سړي له سوریې مصر او ایران څخه قلمي کتابونه راغونډ کړل او خدابخش په لوړه بیه وانیول.

پدې ډول د نوموړي شهرت په ټول هند کښې خپور شو او هرچا چې به یوه څه قلمي نسخه درلوده خدابخش ته به یې راوړله.

د خدابخش د کتابخانې د عربي او فارسي قلمي نسخې ۴۲۲۱ ټوکو ته رسېږي او د کتابخانې مرکزي هسته یې جوړه کړې ده سربېره پردې د اردو، ترکي، هندي او سانسکریت په ژبو هم زیات قلمي کتابونه لري او دغه رنګه ۲۰۰ نسخې کتابونه یې د خرما په پاڼو لیکل شوي او ۷۰۰ ډېرې عالي تابلوګانو ددغې کتابخانې ښکلا زیاته کړې ده.

هر کله چې دغه کتابخانه پرانستل

کیده یواځی دوه نیم زره ټوکه کتابونه او ۴۰۰۰ قلمی نسخې ئې درلودې خو اوس د ټولو کتابونو، قلمی نسخو مصوّرو کتابونو مجلو او جریدو شمیر ۵۲۰۰۰۰ ته رسیږي.

په دغه کتابخانه کښې د اسلامی فلسفې، تصوف، اخلاقو، قانون پوهنې، تاریخ، بیوګرافی، طبیعی علومو او ادبیاتو کتابونه راغونډ شوي دي.

یو تن خارجی چې هند ته ئې په دې وختونو کښې سفر کړی او دغه کتابخانه ئې وليدله وايی:

«حقیقت دا دی چې زمونږ په نړۍ کښې بله هیڅ قلمی کتابخانه نشته چې د خدابخش د کتابخانې د قلمی، مطلا او بی مثاله نسخو ډیرو ګرانبها، میناتوریو، فیروزه ئی، سرو، شنو او زعفرانی پاڼو او ډیرو ښایسته‌ؤ رنګونو سره سیالی وکړی او ورسره مقایسه شی.

د هند نامتو شاعر رابندرنات ټاګور چې په ۱۹۱۳ کال دغه کتابخانه وليدله داسې لیکی:

«زه بدې لا یتناهی شکلونو د لوبې په ځای کښې په ننداره بوخت وم او زما سترګو دلته هغه روښنائی ومونده چې هیڅکله ئې ځان ته کوم شکل غوره نه کړ، لدې کبله هر څه چې ما وليدل بې مثاله او تر هری ستاینې پورته دي».

مهاتما ګاندی د هند ستر شخصیت چې له ټاګور څخه ۱۲ کاله وروسته دغه کتابخانه وليدله، د کتابخانې د خاطراتو په کتاب کښې ئې لیکلی دی:

«د دغې کتابخانې د تذهیب کار، رنګ آمیزی، د قرآن کریم او شهنامې د ښکلی کولو کار دومره لوړ او عالي دی چې د لیدونکو په سترګو کښې جاودانی رڼا تولیدوی، زه د دغې کتابخانې د مؤسس په یاد چې د هند بدې بڼه سیمه کښې ئې دا نادر او ډیر قیمتی کلکسیون پرېایښیدی او د هغه د تهیې په لار کښې ئې د هیڅ ډول فداکارۍ او زحمتکښۍ څخه ډډه نه ده کړې د تسلیم او درناوی سر ټیټوم».

وروسته بیا په ۱۹۵۳ کال کښې جواهر لال نهرو د دې قیمتی معنوی خزانې په باب داسې لیکلی دی:

«هغه مې له توقع څخه ډیر لوړ ومونده، د هنری آثارو لیدل چې د هند پوه تاریخی دوره څرګندوی سړی ډیر خوشحاله کوی».

د دغې کتابخانې په نادراتو کښې یو هم یو ټوک قلمی قرآن مجید دی چې په ۱۲۶۹ عیسوی کال په دری خطاطی سبك (نسخ، ریحان او ثلث) باندې د عباسی دورې د نامتو خطاط یاقوت المستعانی په لاس لیکل شوی دی او د دغه خطاط آثار او د خطاطی نمونې په هغه وخت کښې د مرصع جواهراتو په څیر نادری او قیمتی دي.

دغه قلمی قرآن مجید په ډیره ښه توګه ښکلی او ګل کاری شوی دی.

څوك چې د قلمی کتابونو په قدر او ارزښت پوهیږی هغه د دغې کتابخانې د تیموریانو د کورنۍ د ۱۳۳ پاڼو ښکلی تاریخ په لیدلو هك پك پاتیږی.

د دغو نسخو له جملې څخه یوه هم (پاچا نامه) ده چې د محمد امین په لاس په نستعلیق خط لیکل شوې ده او د شاه جهان د زوکړې موده بیا د ده تر مرګه پورې بیانوی.

په دغو دیوانونو کښې یو هم د خواجه شمس الدین محمد حافظ شیرازی دیوان دی چې په نهمه هجری پیړۍ کښې لیکل شوی دی او د هغه په حاشیو کښې د همایون او جهانګیر د امپراتورۍ د وخت یادښتونه لیکل شوي دي.

د بهار حکومت د هند د حکومت په اجازه د دغې لوئی کتابخانې د اداره کولو چارې په ۱۹۶۲ کال کښې د بیلې تعلیماتنامې پر اساس یوې عالي کمیټې ته سپارلې او د بهار والي د هغه ریاست پر غاړه اری او په کمیټه کښې یو سړی د خدابخش له کورنۍ څخه د نماینده په حیث ګډون لری.

د کتابخانې اوسنی مصارف د هند حکومت له خپلې بودجې څخه ورکوی او د یو لکو نه ئې زیاتې روپۍ د مرستې په عنوان د کتابخانې د مالی بنسټ د تقویې د پاره منلی دي او د هند حکومت تر اوسه پورې یو لکو پنځه ویشت زره روپۍ د کتابخانې د ودانۍ د ترمیم او تزئین په چارو لګولی دي.

دا کتابخانه ډیر نادر قلمی کتابونه لری له دغه کبله د هند مهمه معنوی بانګه تشکیلوی او هغه د هند د ملی مفاخرو څخه ګڼله کیږی.

د۴مخ پاته

# موز او زموږ …

پر ځای باندې ښکاره نه سي زموږ د دوستانو او ملګرو د شک، تردید بدګماني او توهم سبب شوی په زړو، زړو ناحقو او ناوړو فکرو

باندې تعبیر کیږي. د محبت او دوستي پوره ښکاره کول، د عشق او علاقې پوره ړیا، په بوه ګړي کي د بوې کورنۍ د افرادو زړونه د ایسې اوقول ناملایم

احوال په بوه بلاوړ کړ او بدلوي.

همداسې د ښځینو ډېرو کوچنیو او ساده ټکاتو رعایت چي څوک د کولای سي موقع او ځای ئې

معلوم کړي د خلکو په روحیاتو کښې داسې ښه اغیزه لري چي هیڅ وخت له یاده نه وزي.

بو ځلمی د کار په لومړۍ مرحله کښې د ژوند له پیشرفته

څخه نا امید شوی و، ښځې ئې د دې د پاره چي هغه بو کار ته تشویق او ترغیب کړي نو تلقین ئې ورته وکړ چي د ژوند تر مراحلو ډېر

وروسته او ترشا نه ئې پاته شوی او که چیرې ئې ښځې په اصطلاح هغه پر سر، سر ولای او بیچاره ځوان ئې په ترا؛ نا امید او سرګردان کړی وای هم څه عجیبه

نه وه. لیکن دغې پوهې میرمنې داسې ونه کړه او په خپل په زړه پورې بیان سره ئې چي میړه په زړه کښې ئې د جادو په رنګ تاثیر درلود هغه کار او ژوند کولو ته مجبور کړ.

ښځې ئې په ژوند کې د توفیق داسې تعریف ورته شروع کړ چي په ځوان کښې ئې د کار کولو نوی همت پیدا، په خلاص تندي او مطمئن زړه د ژوند په تلاش کښې

شوی په لږ وخت کښې له ترخو نا امیدیو څخه خلاص او ورو، ورو ئې خپله ښځه او زامن د ژوند آرامي او کرارۍ ته ورسول.

همدا رنګه هغه شیان چي د بوې کورنۍ افراد او پاکران دوستان او علاقمندان یو له بله په ترا نږدې کوي ډېر شته چي له هغو څخه بو د بوا و بل د طبیعتو

معلومول دي چي باید د بو او بل په نسبت ئې مراعات وسي. یعنې د بو او بل تمناوې ښکاره او په تحقیق کښې ئې سعي او کوښښ وسي.

(پای)

## د برېښنا نوی آب ګرمي

په دې وختو کښې د برېښنا نوی آب ګرمي منځ ته راوتلی ده چي د برېښنا په بوڅا کلی درجې تودوخه په کار لوېږي.

دغه آله ډېر ژر او په تو دوی او زیاتی تودې او په د کورونو د حمامونو د پاره په لږ وخت کې تهیه کولای شي او نه بریښو دل کیږي چي د اوبو د تودوخې درجه د سانتیګراد تر ۴۶ درجو پورې ته ولاړ شي.

دغه آله ډېره ارزانه هم ده لوښي یا بل هیڅ شي نه سوځي، ډېره ورده او سپکه ده.

ژباړه :

# د ړندو مخصوصه

## الفبا

یو سوویټي مهندس لیف اندرسن په دې بریالی شوی دی چي د بینا کسانو د پاره د ړندو مخصوصه الفبا الکترونیک مغزته ور کړي او د ړندو د پاره ئې د فهم وړ وګرزوي.

الفبا د دغه نوی سیستم د بشپړ بدو لپاره د سوویټ د فني پراختیا د مؤسسې تر نظارت لاندې څېړنه کیږي.

د ړندپانو مخصوصه الفبا «پري» چي د ۱۵۰ کلونو راهیسې رواج ده پوساده او منطقي سیستم دی او پوازې د بشپړو ټکو لپاره جوړ شوی دی او د الکترونیک مغزونو په تکنالوژي کي

د نړۍ د ټولو ژوندیو ژبو د الفبا ټولي ښېګڼې لري.

هغه کمپیوترونه چي په دغه الفبا سره کار کوي ډېر ارزانه دي او پیټی

ئې د معمولي پیټو یا کارتونو سره فرق نه لري په داسې حال کي چي د هغو د نوشتو ویل آسانه دي.

د ړندو د الفبانوي سیستم داسې تغییر موندلی دی چي بینا کسان هم په یو مجلس دقیقو کي د هغه اساس او اصول زده کولای شي.

څنګه چي هغه الفبا چي په دغه کمپیوترونو کي په کار لوېږي پر جسته نه دي ړندپان د هغه شي د ویلو لپاره چي الکترونیک مغز ئې وړاندې کوي

د مخصوصي وسیلې څخه چي د ویلو قلم ئې بولي ګټه اخلي، په دې ډول چي د هغو د ارتعاشاتو منځ ته را تګ د تودو د پیږندلو قدرت پیدا کوي.

د جوزا د شپږمې ورځې په مناسبت:

# قلمه پاڅه!

قلمه پاڅه ددې خاورې سرباڼې ولیکه
تاریخ ته کوره بیاڅې نوم په نیکنامی ولیکه
میوند ته ورسه چې همیش دی ورور ګلوی پیادوی
ددې ځوانانو لوړ همت مړدانه ګی ولیکه
بیا نو دا تیرسه د بولدک پر سرباړانو باندې
د رور ـ دعاددوی وروح ته په راستې ولیکه
ولاړسه خیبر ته دودې هم مره بیرغان رېږي
بیانو ددې خاورې غښتلي بخوانی ولیکه
دژرغونـــې او دناز و انـــا او لاد پـــادوم
داحمد شاه او میرویس خان قدردانی ولیکه
دغزنو یانو، او غــــوریانو ـ سوریانـــو بیان
اوهغه وخت ددوی دتورې روښنائې ولیکه
خپل سرو مال یې ورکـــاوه د خپل هیواد په مینه
ددې ځوانانو صداقت او یکرنګي ولیکه
غلیم به هر وخت د پښو په وسله ډېر نازېدی
دوطـن دوستو پـروطـن مسلمانـې ولیکه
پسې دا تیرسه په دا اوس کې عرب وروڼـه ورسه
پر فلسطین دظـالمانـو بې رحمـې ولیکه
مصرـ اردن ـ اوسوریـه ـ عراق تـه وکـــه نظـر
الجـزایـــر تـه دجـهاد مبارکــــې ولیکـه
دستر ګو دید تاریخ پـه دراړه په نظر کــــې نیسو
د هندو چین دېې وزلانو ناتوانی ولیکه
چـې دا دې ولیکـل نـوستا وظـیفـه ختـم نـده
د استعمار چالاکو چلند به رسوائی ولیکه
زهر فروشان خوتل مدام سودا پـــه شهدو کوي
ته ئې همیش دا دسیسې او فریب کارۍ ولیکه
که رنګ تمام سو نو ته د ګک دزړه په وینو ګرزه
و پښتون ورو ته دتاریخ سرګردانی ولیکه

(لالی ماما نورزی)

## دغره خطاب

لالې نـه دی ځو کیدلی پـه بیدیا کښې — برجمود باندې ستا خاندې دمره وینې
ستا پرحال مې حسرت (تاو) موند په کوګل کښې — په اثر مې ئې (کرنګ) شوې دزړه وینې
ځیر بده مې د ځګر دقول اثبات کا
دماني یا قوت نو میږي دغره وینې

(رشاد)

# ژوندون

د مور د ورځې په مناسبت

مرتب «ویران»

## دیوه پرانده ارمان

وائي چې لمر خورا ښکلی، د ګلانو منظره چې د رودخانې پر غاړه دا و بو پرمخ راټوی شوی دی ډېره ښایسته، د مرغانو هسکه الوتنه د ننداری وړده.

وائي چې په شپو د آسمان مخ زرینی وړانګی ښلکوی، بیا یې په سپینو بادبانو سره د سمندر پرمخ چې ځپې ئې لکه زړه سولونکی آه ویر لړونکی دی.

وائي چې د ګلانو تر عطرو رنګ ښه او زړه وړونکی دی.
غرونه، دڼې، چمنونه، ونې، ځنګلونه، باغونه او دښتونه په تیره بیا ګټیګ دومره لطیف او زړه وړونکی دی
انسان ددې قول عظمت او برم په وړاندې باید پر ځنګنو شي او د حیرت سر کښته وځړوي.

اما زه نه هغه سیند چې ډغ ئې اورم لیدلای شم
او نه هغه رنګارنګ ښایسته ګلان، نه اسمانونه
نه ښکلی لمر، نه ونې، نه خوږې میوې، نه
مرغان. نه د ګټیګ ښایسته دنیا، بلکې
ددې ټولو د نه لیدو څخه متاثر او
غمجن هم نه یم.

لو یه خدایه (ج) ددې فانې نړۍ له ښو او د لیدو وړ شیانو څخه د هیڅ شی هیله او ارمان نه لرم مګر افسوس ......

**«چې یوه پلا مې خپله مـــــــور لیدلی وای»**

پښتو کوونکی: ا – م «کرزی»

## ما څه ولیدل؟

ستا په ښو سترګوکې مې خپله
مـدعـا ولیده

ورکه مې سوې وه خوښتله مې
څو مـا ولیده

نه پلږ زنانو لـره محرم نه قال
بیناـنو لـره

په قـرینه د مـړام کتو مې
پر مـلا ولیده

ورك خومې زړه دی سترګې ستا
دلربائي اربنه

خونه د زړه مې چادر وښوده
چې تا ولیده

خوښي به وسپارو وزړه نه چې
څه ده خوښ ستا

شخړه او پوډپېږی ښه به نه شی که
بل چـا ولیده

زما له طرفه ددعاف چې خوښ
له تا سره دی

دا قدر پوه شوم چې مې ستا سره
وفـا ولیده

ستا د رضا سپارښت باهم ورته
کوم په وصیت

زما هم رضا ده که مې ستا سره
رضـا ولیده

رحمت الله ژوند به سې تیر په هره
توګه چې وي

غواړم دی مرسته که په مادي په
عقبـا ولیده

الحاج رحمت الله بابا مرحوم

## د مرحوم صالح ملغلری

دا ئې حجاب د مخه ایسته کی که لمر راوخوت
که په آسمان کښې پاس پر ما بدر القمر راوخوت

دالونل شوی عطریات دی او که زلفی د یار
که له ختن څخه کاروان د مشك، عنبر راوخوت

دا په مسا کی سپین غاښو نه سوه ښکاره د نګار
که د یاقوتو پر جام ستوری د سحر راوخوت

دا ئې د سترګو په کتو کړمه فراد د صحرا
که شاوخوا د تور دوزلفو بیا لښکر راوخوت

دا ئې د مهر ډغ پر ما وکی طبیب مې دعشق
که مې د هجر د لمبو څخه پوخ ځګر راوخوت

دا د وصال وعده نو دې سوه زما (صالح) ژ دیار
که مسیحا د رنځور زړه مې پر بستر راوخوت

مرحوم صالح محمد «صالح»

ښاغلی عبدالقدوس «صاحبزاده»
د کندهار د مکلفیت مدیر

دا شعر د مور د ورځې په مناسبت کې د میرمنو ټولنې د ریاست له خوا دوهمه درجه جایزه ګټلې ده

# موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

که شپېته کاله د عمر څما تېر شي
ستا د مینې غېږ به کله څما ډېر شي
ستا فراق کې چې څما اوښکې بهېر شي
څڅېدونکي د باران څڅکو به څېر شي
حك به ذره مې ستا د مینې محبت دی
موري ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

که به غېږ نه شا نته دا غلمه صحرا نه
هغه دم به شولې ډېره پرېشانه
تا به وکړله پوښتنه بیا لــه مانه
څه شوې اې صحرا کې بیا له چا نه
ما به وویل ستوما نه مې صورت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی

که د شپې به مې لږ ټوخل به زوره
ته به پاڅېدې له خوبه نه سر توره
تا به ویلې اې څوي جانه ماله ګوره
څه درپېښ شو اې څما د سترګو توره
ما به وویل چې جوړ یم خیریت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی

که د ودې به وه لږ کمه ما خوړلې
ته به ناسته وې خپه آ د غم لړلې
که به لږ شانته ناجوړ شوم تا چړلې
به چوړې به دې مچان را نه شړلې
حافظه کې مې ستا، یاد هغه همت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت ذی

که به ژړ و مه پیادمن ته وې پیادمنه
که به ژ و مه غمجن ته وې غمجنه
تــا بــه ویلې محبت نــه اې څمنه
غوږ ه ولې مې ده خدای ته ده لمنه
خدای دا کړې ستا وجود په شفقت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی

که د کوره به د باندې غالمغال شو
یا به جوړ د چا به مخ کې جنجال شو
به تا باندې به کاله کې څه بدحال شو
تا به ویل ګني چې څوي مې پایمال شو
مالوی کړې دغه څوي په مشقت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی

که به پلار دا باندې کور کې لږ په قار شو
ستا زړګی به به کوګل کې ناقرار شو
زما پلار ته به ستا دا رنګه ګفتار شو
دا څوي جان څما خپه او غمګسار شو
چاو یلي در ته دروغ او څه تهمت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی
چې پیدا شوم ما دا توان نه درلودلې
چې پښېله مې ستا نې شولې رودلې
تا نه مخ کې ماخدای نه ؤ پېژاندلې
خدای اوله کې دی تا را ته ښودلې
تا ښودلې را ته خدای او حقیقت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی
که ګیلاس ؤ که پیاله به مې کړه ماته
تا به بله را ته وا خیسته صبا ته
یا کم شي چې به کیده زما و خوا ته
تا به نه پرېښود حاجت زما چا ته
حاصل کړې دې تل ماله مسرت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی
به کاله کې نازولې بختور وم
ستا به مینه ژه به ټولو زوره ور وم
دستر خوان به سر به ناست څه معتبر وم
کله کله به انــدك شي مـرور وم
تل د ما سره تا کړې مروت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی

د طفلۍ نه چې ځلمی او پسې لوی شوم
بیا نامزد ه او واده خاوند د طوی شوم
ورپسې چې بیا نه پلار د لودا او څوي شوم
اوس پوره ژه ستا به قدر باندې پوې شوم
ځلمیتوب ؤ لیونتوب دا ئې علت دی
موري ستامقام د هر چا نه اوچت دی

حقیقت را ته معلوم شو هغه دا دی
چی اولاد د زړه ټوټه مور ته جدا دی
ځکه مور د خوا نه غیر جان وفدا دی
شاید دې کی څه موجود سر خوا دی
ځکه ماسره تاکړی په خلقت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

وروراوخور که اوس لرم هغه کشران دی
که اولاد می چنکی که دلکان دی
په راحت او آسایش کی دخپل ځان دی
بندوو ازمی نه د دردا او نه خفگان دی
په کار ما له ستا همانغه عطوفت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

هری خوا ته چی اوس ګورمه ټول غم دی
فلک جوړ په ماغمو نو نه ستم دی
د غمو نو نه جهان په ما تورتم دی
غمخور نه لرم په ما ځکه ماتم دی
ما اخیستی ستا دژوندو نه څه لذت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

موری ستا په قدر زه نه پوهیدمه
ستا د ځنګه نه په زه لیری تښتیدمه
بې پروا په هری خوا ته ګرځیدمه
نا پوهی وه هغه وخت نه تر دې دمه
شفقت کړی دی تا، او ما شدت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

په دنیا کی کښته پورته چی نظر کم
ورته ګښینم ځان هوښیار کم هوښ پسر کم
قوم او دوست او د قریب نه ځان خبر کم
بیا هغه په تصور کی لر و بر کم
یکښی پورته ستا هر چا نه منزلت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

موری ستا حق په ما باندی لکه دین دی
اطاعت دی په ما باندی فرض عین دی
قول خولی نه د سرور د دوا په کو نین دی
(الجنت تحت الاقدام الوالدین) دی
دا ثابته حقیقت په هر ملت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

(ولا تقل هما اف) کی ایما دی
(ولا تنهر هما و قل هما) دی
متصل ور پوری (قولاً کریما) دی
مور و پلار ته اوف ممنوع په همه چا دی
رب درکړی موری تا لره عزت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

پیدا شوی مور د نس نه پیغمبر دی
که داؤد چی سلیمان د ده پسر دی
ابراهیم چی په تاریخ کی معتبر دی
ټول عرب او اسرائیل د ده ټبر دی
هر یو مور غیږ کی لوی کړی په دقت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

مور د عاوه چی موسی کلیم الله ؤ
که عیسی بن مریم روح الله ؤ
په آخر کی محمد رسول الله ؤ
ویل شوی پری درود صلی الله ؤ
ختم شوی په ده باندی نبوت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

که (یما) ؤ که (دارا) که (سکندر) ؤ
اخیستونکی دی خراج د بحر و بر ؤ
که (ففغور) ؤ د چینیانو، که (قیصر) ؤ
دسی نور و پادشاهان تاج ئې پسر ؤ
په دوی شوی خپلی مور نه مرحمت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

(افلاطون) ؤ که (سقراط) خو عالمان ؤ
(ګالیله) ؤ که (رافائیل) د جهان ؤ
(لوازې) که (ماکماهون) که (ماګملان) ؤ
(انشټاین) غو ندی نور داسی پوهان ؤ
ابتدا کی دوی له، مور نه هدایت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

کاغذ خلاص شو لاس می ستړی رنګ تمام دی
نا تمام باتی تعریف د مور مقام دی
صاحبزاده په دلته کړی می کلام دی
زما د مور د پښو خاورو ته سلام دی
آرزو می له ځښتن تا له جنت دی
موری ستا مقام د هر چا نه اوچت دی

(پای)

د غ، ایوبي په قلم:

# د معظم تولواکه همایوني اعلیحضرت له حضوره

## صوفي ګل محمد د کندهار د ښایسته ډبرو څخه د ښکلو شیانو د جوړولو تکړه او ماهر صنعت کار او حکاک د یوه فرمان په ضمن کې د لاس د ساعت په بخشش مفتخر شوی دی

### دې وائي چې د صنعت کارانو د تشویق د پاره باید د لاسي چاړو د صنعت کار په نامه په کال کې یوه ورځ ونمانځله شي

صوفي ګل محمد چې د کندهار د لاسي چاړو یو تکړه صنعت کار دی د ښایسته ډبرو څخه ښکلې کیڼۍ او نور شیان جوړوي .

دې وائي چې زما پلار د شاه مقصود او نورو ډبرو څخه تسبیح جوړولې او ما د پلار په ژوندکې دوه کتوب په دور کې د ٤٥ کالو را پدې خوا د پلار تر برستي لاندې د ډبرو کار شروع کړ او لومړی شغل مې د تسبیح جوړول و او په هغه وخت کې مې د شاه مقصود او د میزان د علاقدارۍ د ډبرو څخه د تسبیح په جوړولو کې کار اخستی .

صوفي ګل محمد د خپلې حکاکۍ او لاسي چاړو د صنعت د پرمختګ په باب داسې ووېل چې زما کار تیا کاله د مخه د ماهیر څخه ژړې ډبرې راوړې دي که څه هم چې ډبرې د خود کلکوالي له کبله د کندهار حکاکانو او تسبیح جوړونکو کار ترې څخه نه اخستلای او بې کاره پاتې وې، هر کله چې زه د یرش کاله د مخه هندته ولاړم او په دغه هکله مې زیاتې څیړنې وکړې او د ماهیر د غه ډبرې کلکې ډبرې مې د هغه ځای حکاکانو ته وښودلې نو هغو راته ووېل چې تاموږ ته ښتې ډبرې راوړې دي ته پله پلامو ږ ته تر دې کلکې ډبرې راوړه چې موږ د کور هر ډول سامانونه او د ښکلي شیان ځنې جوړ کړو نو د دوسته تر دې زما فکر بر ته له تسبیح څخه د نورو شیانو د جوړولو خوا ته واوښتی او د ماهیر ډبرو زما توجه ور جلب کړه او د خارج څخه مې د هغه سره د ډبرو تو ږلو خارجي وسایل راوړل او اوس کولای شم چې هر ډول کلکه ډبره صیقل، سوری او د خلکو د فرمایش سره سم هر شی او هر شکل ځنې جوړ کړم .

صوفي ګل محمد د یوې پوښتنې په جواب، کې ووېل چې زه کوښښ کوم چې د کور د ښکلا د شیانو او ګیڼو په جوړولو کې ابتکار وکړم او په دغه هکله موفق هم یم د هغه دلاسي چاړو په ننداړتون کې زما لاسي چاړې په نورو غړو کې نه ایدل کیږي .



صوفي ګل محمد حکاک

زموږ د غه تکړه حکاک زیاته کړه چې د ١٣٣٥ کال راهیسې هر کال د جشن په ننداړتون کې په کندهار او کابل کې خپل د لاس جوړ شوي د ښایسته ډبرو شیان د ننداړې لپاره ږدم او زموږ خلکو ته ئې خوښ وی او راتیسي ئې .

د ه د یوې بلې پوښتنې په جواب کې ووېل چې ما تراوسه پورې د ډبرو جوړ کړي سامانونه المان امریکا او ایران ته لیږلي دي،

دغه رنګه سږ کال به بیل بیل شکل د سګرټو قطی، خاکستر دانی مخی، ناک او کمر بند و نه څیزونو فرانسویانو به نقدو پیسو و اخستل او د پاریس به ننداړتون کی ئی ږدی. زما پر نامه کښېښودل او د تجارت دوزارت په واسطه می جاپان ته د خپلو لاسی چارو د شیانو نمونی استولی دی.

صوفی ګل محمد اوس د یشم لاجورد، داهیبر، شاه مقصود او رخام د ډبرو څخه کار اخلی او ډیر ښکلی غابونه، پیالی، غوری ګان، خاکستر دانی، د سګرټ قطی، څینی کوچنی مجسمی، ناک، مخی، هګی او د ښځو ښکلی ګیڼی او د عصری خونی ډول ډول لکس د ډبرو شیان جوړوی.

دی وائی که څه هم زه کولای شم چه د ښکلو ډبرو څخه لوی حوضونه ښکلی فوارې، لوی میلان، د دروازو چوکاټونه او د مسجدونو دپاره ډیر ښی ممبرونه او یاد لویو کسانو د قبر ډبری او لوحی د رخام څخه جوړی کړم چی به خارجی هیوادونو کی مالیدلی دی خو څنګه چی د بریښنا او برقی ماشین څخه می تر اوسه کار نه دی اخستی او په دغه کار نه یم موفق شوی خو اوس چی د کندهار د بریښنا وضعیت ښه شوی دی نو ښائی چی به دغه کار هم شروع وکړم او خپلو هیواد والو ته ډیر نوی شیان جوړ کړم.

صوفی ګل محمد وویل: زما هیله دا ده چی باید د کانو او صنایعو دوزارت له خوا د هیواد د صنعت کارانو د تشویق او صنعت د پرمختیو لو دپاره د ښوونکی، د روغتیا مور او داسی نورو ورځو په څیر په کال کی یوه ورځ د صنعت کار په نامه و نمانځله شی او په هر ولایت کی دی خاص ننداړتونونه جوړ شی، دا کار به د هیواد د لاسی او نورو چارو او صنعت په پرمختګ کی ګټوره نتیجه ورکړی.

صوفی ګل محمد د دې پوښتنی په جواب کی چی د ده اقتصادی حالت څنګه دی وویل: که څه هم اوس زما زیات وخت په حکاکی او د ډبرو په چارو څکه نه تیریږی چی زه زیاتره وختونه د ښو ډبرو او بازارموندلو دپاره د خلکو او رسمی مقاماتو سره په تماس کی یم خو بیا هم کوم کار چی کوم هغه زما د خوارلس کسیزی کورنی متوسط ژوند را تأمینوی او له دغه جملی څخه زما څلور ملکان په ښوونځی کی دی، ده وویل: چی زه په خپل ژوند کی ډیر خوښ یم او تل د خپل خدای څخه د دا کړی نعمتو له کبله شکر کاږم.

صوفی ګل محمد د دې پوښتنی په جواب کی چی ده په خپلو لاسی چارو کی کوم شی ډیر خوښ شوی دی وویل: که څه هم ما ښه لاجورد نه درلودل خو د معمولی لاجوردو څخه می سږ کال ١٠٤ دانی ښکلی تسبیح د یوه مثقال او لس نخودو په وزن جوړی او هغه می د خپل محبوب او ستر پاچا همایونی معظم اعلیحضرت حضور ته چی د صنعت او صنعتکارانو ستر حامی دی وړاندی کړی، معظم ټولواکه زه د خپل بختور فرمان په ضمن کی د یوه ساعت په بخشش مفتخر کړم، شاهانه ذات زما د ناچیز صنعت ستاینه کړی او زه ئی په دغه هکله زیات تشویق کړی یم چی هغه ما ته تر ملیونو ملیونو افغانیو زیات ارزښت لری.

ده زیاته کړه چی ما تیر کال د شاه مقصود د ډبرو څخه داسی تسبیح جوړه کړی چی د ١٠٤ دانو وزن ئې نیم مثقال ؤ که څه هم هغه تسبیح خلکو خوښه کړه او ما بیا وروسته یوه بله وجوړه تسبیح جوړه کړی چی وزن ئې اته نخوده ؤ او په دې فکر یم چی په آینده کی د شاه مقصوده ډبری څخه داسی تسبیح جوړه کړم چی د ٤٠٠ دانو وزن ئې یو مثقال وی.

صوفی ګل محمد په دغه باب چی آیا ده په حکاکی او د ډبرو څخه د ښکلو شیانو په جوړولو کی کوم شاګردان هم روزلی دی وویل چی ما تر اوسه پوری په دغه شق کی زیات کسان روزلی چی څینی ئې اوس د تسبیح جوړولو خپلی دستګاوی لری.

صوفی ګل محمد اوس هم په خپله دستګاه کی چی د مرستون په تعمیرونو کی ده دیرش تنه شاګردان لری.

دی وائی که ما ته د لښکرګاه د رخام د ډبرو د فابریکی مقصدیان په مناسبه بیه زیاتی ډبری را کړی شاګردان می تر دی ډیریږی.

ده دا هم وویل چی هغوی زیاتی ډبری په مناسبه بیه څکه نه را کوی چی وائی زه باید په هغه فابریکه کی د یو کارګر په حیث کار وکړم او اوس ډبری د خپلو شاګردانو په واسطه را غواړم حال دا چی هغه فابریکه باید زما د صنعت له کبله زما سره ملازمه مرسته وکړی.

«پاته په ۲۲ مخ کی»





عبدالصمد «نصرخواه»: تاریخي څېړنه:

# تاریخ او ځینې مؤرخین

تاریخ د تېرو واقعاتو څرګندوی او د واقعاتو سلسله یې جاري ده. تېرو مؤرخینو د تاریخي پېښو په ساتلو کښې په خدمتونه کړي دي کله چې هغه دوره تېره شوه او متاخرینو ته را ورسیده هغوی هم د تېرو مؤرخینو په څېر دا سلسله په وساتله د تېرو پېښو او اوسنی پېښو تاریخي پېښې یې سره پیوند کړې او هغه یې په څو ډولونو ووېشلې لکه د لویو او نامتو وګړو تاریخ. د ښارونو تاریخ د هیوادونو خصوصي او عمومي تاریخ او نور.

ابن خلکان چې د ۷ پېړۍ د عربي ژبې لوی نومیالی مؤرخ دی د تاریخ په لیکلو کښې د قدر وړ خدمتونه وکړل حتی چې د تاریخ

پوهان هم ده د خدمتونو مرهون دي ده په ډېر کوښښ او زیار د ډېرو مشهورو او لویو وګړو د علم او ادب د خاوندانو حقایق

په ډېر ساده او بسیطو الفاظو ښکاره او ولیکل، ده چې په دې وه مؤرخ کتاب په عربي ژبه ترجمه کاوه لومړی به یې د هغه د ژوند

او مړینې په برخه کښې بوره معلومات لاسته راوړی خو کله چې به دېوه بوه او یا مؤرخ د ژوند او مړینې د نېټو نه څرګند شول نو

د هغه ترجمه یې نه کوله او د ځانه یې څه نه پر لیکل.

ابن خلکان ۸۲٦ تاریخي ترجمې وکړلې په ډېر غور او دقت

یې د (وفیات اعیان) په نامه کتاب تالیف کې چې په تاریخي فن کښې د پخوانی غورو آثارو څخه ګڼل کېږي.

ابن خلکان په ٦٨١ هجري کال کښې مړ شوی دی.

تر ابن خلکان وروسته بل مؤرخ چې (ابن شاکر کتبی)

نومیږی او په ۸٦٤ هجري کال په عراق کښې زېږېدلی دی منځ ته راغی، ده د نوموړی مؤرخ د تاریخي سلسلې لمن براخه کړه کومې پېښې او یا څه مشهور کسان چې د ابن خلکان د تاریخي څېړنې څخه پاته شوي وه د خپلې زمانې د څینو نامتو کسانو په ګډون یې پر هغه زیاتوب راووست او یو کتاب یې د (فوات او وفیات) په نامه تالیف کړ.

وروسته بو بل پوه او تاریخدان چې (ابن طباطبا) نومېده په (موصل) کښې پیدا شو، ده د یوه غوره تاریخي کتاب په لیکلو پیل وکړ او په دغه تالیف کښې یې د ټولو اسلامي دولتونو مهمې تاریخي پېښې تر عباسي خلیفه ګانو پورې په ډېر ښه سبك او طرز ولیکلې د خپلې زمانې تاریخي پېښې یې هم د خپل تالیف جزء

وګرزولې او خپل دغه کتاب یې په ۷۰۱ هـ کال په بریالي ډول بشپړ کړ څرنګه چې ده د فخرالدین عیسی په عصر کښې ژوند کاوه نو د خپل تالیف کړي کتاب نوم یې هم هغه ته منسوب کړ او د کتاب نوم یې (فخري) کښېښود.

(ابوالفدا) چې بو بل پوه او لوی عربي مؤرخ دی د تاریخ په لیکلو کښې یې په خدمتونه وکړه نوموړی د (بشر دلنډ تاریخ) په نامه یو کتاب تالیف کې ده په دغه لیکنه کښې د (تاریخ طبري) څخه ډېره استفاده کړېده خو ابوالفدا په ٦٧٢ هـ کال کښې زېږېدلی او ۷۳۲ هـ کال کښې مړ شوی دی د دغې دورې د

مؤرخینو څخه چې د محدثینو او عالمانو د ترجمې په لیکلو کښې یې ډېر شهرت درلود (شمس الدین ذهبی ژ) دی د ده د لیکل شویو کتابو څخه د (اسلام تاریخ) او (طبقات حفاظ) کتابونه ښه شهرت لري.

په دغو وختونو کښې یو بل عالي مقامه او پوه مؤرخ چې (خلیل ابن ایبك صفدي) نومیږی پیدا شو ده د تاریخ په برخه کښې څو کتابونه ولیکل د ده لوی او مشهور تاریخي کتاب په ۲٦ ټوکه کښې ترتیب شوی دی.

ابن کثیر چې هم د ۷ پېړۍ مؤرخ دی او په ۷۷٤ هـ کال کښې مړ شوی دی د تاریخ په لیکلو پیل وکړ او یو کتاب یې د (بدایت او نهایت) په نامه تالیف کې ده په دغه کتاب کښې خاصه سلیقه ښودلې او د استفادې وړ یې ګرزولی وه او تر مړینې وروسته یې دغه تاریخي کتاب په یادګار پاته شو.

د دغې زمانې یو بل مشهور تاریخ لیکونکی (مصري ابن فرات) دی دغه

تاریخدان چی ۷۳۵ هجری کال کښې زیږیدلی او په ۸۰۷ ه کال مړ شوی دی، د تاریخ په بوخه کښې ډیر مهم تاریخي کتاب تالیف کی

چې په هغه کښې ډیری تاریخي پیښې داخلې دي خو کوم شی چې د ویونکو توجه ددغه کتاب ویلو ته ډیره اړوولی وه هغه د صلیبی

جګړې پیښې دي چې په اغیزمنا که توګه پکښې ایکل شوی دي (ابن خلدون) چې ددغه پېړۍ ډیر ستر شخصیت او لوی مؤرخ

دی او ترڅن ورځې پوری ئی نوم دخلکو پوژبه یادیږی د تاریخ علم ته نوی بڼه ور کړې او تازه اساسات ئی ورته کښېښودل، ده

د تاریخ په برخه کښې مؤثق کتاب لیکلي او تالیف کړیدی دغه کتاب چې په ۷۶۷ ه کال کښې وشپږ شویدی ډیر مهم او تاریخي کتاب دی .

ابن خلدون د خپل ژوند تر پایه ددغه لیکل شوی کتاب په دوامداره اصلاح مشغول او هر ډول اشتباوی ئې ورڅخه ایسته کړیدی .

د ابن خلدون فاضل او نامتو شاګرد (مقریزی) دی چې وروسته د خپل اصلی مسکن (مسقط الرأس) څخه (قاهری)

ته د خپل پلار سره ولاړ ده دخپل همت او کوښښ په برکت د تاریخ په فن کښې ډیر کتابونه وایکل

(قسطا، فاطمه دولت، ممالیك او سیرت النبی ) ئې مشهور کتابونه دی ده داقتصادی قوانینو او خصوصی مسایلو په برخه کښې

هم تالیفونه وکړل ددغو کتابو له جملې څخه چې ډیر شهرت لری هغه کتاب دی چې د (مواعظ او اعتبار) پنامه یادیږی دا کتاب د مصر په باب ډیری مهمې څیړنې لری نوموړی مؤرخ د ډیرو کتابونو څخه نقل او اقتباس کاوه ده دخپل لوی استاد ( ابن خلدون ) ډیری نظرئی او تاریخي روشونه تعقیب کړی او راوړی دی .

د تاریخ دعلم دمشهورو عالمانو څخه بل د دمشق (ابن عربشاه) دی ده لومړی د (ګوډ تیمور) او دهغه د کارنامو په برخه کښې یو کتاب تالیف کی او په هغه کښې ئې مهارت وښود ددغه کتاب نوم ئی ( عجائب المقدور در اخبار تیمور ) کښېښود ابن عربشاه د شام په یوه سخته جګړه کښې د تیمور له خوا

بندی او سمرقند ته وابیول شو ده وروسته د سمرقند څخه خوارزم او د تیمور د قلمرو نورو ډیرو ځایو او ښارو ته سفر او سیاحت وکړ دغو سفرونو او سیاحت ده ته سره دډیرو معلوماتو په راغونډولو او د کتابونو په تالیفولو کښې مرسته وکړه همدغه وجه وه چې ده د تیمور بانو په برخه کښې پوره تنی لوی کتاب جوړ کی .

ده بل کتاب چې د (کلیلی او دمنی) کتاب ته ډیر ورته دی هم تالیف کړیدی دا کتاب (فا کهه خلفا و مفا کهه ظرفا) نومیږی پدې کتاب کښې ده د مرغانو او ژوو د ژبو حکایاتو ته اشاره کړېده ابن عربشاه چې د دمشق ؤ په ۷۹۱ ه کال زیږیدلی او په ۸۵٤ کال کښې مړ شویدی .

د عربی ژبی د نهمې پیړۍ بل مؤرخ (ابوالمحاسن تغری) دی دی د تاریخ په علم کښې دلوړ فکر خاوندی نوموړی ( دنجوم زاهره دراخبار مصر و قاهره) پنامه یو کتاب لیکلی دی چې ددغه کتاب مهمې برخې د مصری عربو د فتوحاتو پیښې دی ددغه عصر یو بل پوه مؤرخ (مقری) دی ده خپل

تالیف کړی کتاب پردوو برخو ویشلی دی په یوه برخه کښې ئی (داندلس) تاریخ او دهغه دپوهانو څیړنه ده او بله برخه ئی د استادانو او نورو همعصرو پوهانو په باب معلومات او بحثونه دی خو په پوره تنیو پیښو او وختونو کښې په پوره تنیو کتابونو سربیره نور ډیر تاریخي کتابونه د نورو مؤرخینو له خوا هم تالیف او لیکل شوی دی .

## دغه شاعر وپیژنئ :

# آهی

بوعثمانی شاعر دی پلار ئی تاجر ؤ . آهی د خپل پلار تر مرګ وروسته په قسطنطنیه کښې خپل تحصیل ته دوام ورکړ د اشعارو دوه کتابونه ئی د (خسرو او شیرین) (حسن او دل) په نامه ولیکل.

دوهم کتاب ئی د رمز په ډول د شعری قصایدو څخه عبارت دی یعنی د نثر په صورت دی چې لوستونکی د شعر خیال ورباندی کوی .

نوموړی د قره فریا برو هیا په ښار کښې چې په تحصیل بوخت ؤ مړ شو .

د خارجي منابعو څخه : دا يو بزي ژباړه :

# دراتلونکې معمارۍ ټکنالوژي

په آينده کښې د معمارۍ صنعت د هغه ځای د اوسيدونکو د خوښتنې سره سم دی او په راتلونکی ۳۰ کلونو کښې به د يوې غوټۍ په شان سره د کورونو اوسيدونکي د کولای شي د خپلو کورونو په ترڅه بوري طرحه خپله او ښه ( او ) وړاکي .

مخصوص کارتونه سودي کوي د اوسيدونکو د راتلونکو کورونو په جوړولو کښې به ستر نقش ولوبوي .

خو موشه سافدي د راتلونکې معمارۍ ته بدبينه دی او وايي چې نوی پېړۍ به د واقعي او اصولي معمارۍ د صنعت د مرګ سره بای ته ورسيږي .

او بايد په دې انتظار کښې اوسو چې په آينده کښې به د رياضي د پېچلو مسايلو د عايت ورکوونکي او د (آزادفورم) سيستم په کورونو د جوړولو په لار کښې زيات اغېزه ولري .

په آينده کښې به د معمارۍ فن د مره برمخ ولاړ شي چې هر څوك به و کولای شي چې د يوې غوټۍ په شان ور کولو سره د کور د پاره يوه داسې نقشه وړاکي چې خوښه يې لري او په هغه ځای کښې به اوسي .

نوموړي معمار د خپل کتاب په ورو ستنۍ برخه کښې ليکي :

د معمارۍ ټکنالوژي به په راتلونکي وخت کښې په هغه اندازه چې کولای شي صنعت به د طبيعت په خدمت يا د هغه برعکس په کاروا چوي او د خلکو په اختيار کښې به يې کښيږدي او د معمارۍ د اوسني صنعت مطالعه د دغه معمار پيشګوئي واقعيت ته نژدې کوي .



په اوکلوهوما کې د جانسن د تياتر عصري ودانۍ

د نړۍ لوی ۳۲ کلن معمار موشه سافدي په خپل کتاب کښې د راتلونکی معمارۍ په باب پيشګوئي کړې ده او اوس د هغه پيشګوئي ورو ورو رښتيا کيږي .

نوموړي په خپل دغه کتاب کښې ليکلي دي چې د راتلونکي معمارۍ به هر نر او ښځې ته دا اجازه او فرصت ورکړي چې په هر ډول چې زړه يې وغواړي د ځان د پاره هغسې کور جوړ کړي او په کومه آساني چې د اکثر و نيك مغز د ستګاه

ده په خپل کتاب کښې ليکلي دي چې کولای شي د کور جوړولو يولوی ماشين توليد کړي او د پلاستيك څخه به د دغه هکله په آينده کښې کار واخلي او د حيرت خبره نه ده که په آينده کې وکتل شي چې دا د يو ټول مغزنو نه د لو يو قطرونو سره د پلاستيك څخه جوړ شوي او کورونه ټول د يخې او تودې هوا په فشار ور کونکو دستګاهو سره مجهز وي .

دغه معمار عقيده لري چې هرشی د تحول په حال کښې دی

(د ۱۹ مخ پاتې)

## صوفي ګل محمد د کندهار ...

صوفي ګل محمد وويل چې د هيواد خلك د ده توليدات په ډېره خوښي اخلي او ورځ په ورځ يې د صنعت علاقمندان ډېريږي .

صوفي ګل محمد په پای کې وويل چې د هيواد مطبوعاتو د ده د صنعت په معرفي کولو کې ستره برخه اخستې او ده ته يې د خپرونې د لارې ډېره ګټه رسولې ده او وايي چې زه د خپلو مطبوعاتيانو د وطندوستي او معنوي مرستې څخه ډېره خوښي او مننه کوم

(پای)

دوهمه برخه :

د مولانا حبیبی لیکنه

# دشطرنج او نرد اصل واضع

او د نوشیروان کار ژاړ د دغه ډول صاحب الموید او له حدیث څخه داډول بیان کوي

«من لعب بالنردشیر فکانما صبغ یده فی لحم خنزیر ودمه» دواړه مسلم او دمشکوات شرحه داوايي :

ان نردشیر معرب وضعه اردشیر

بن بابک من احد ملوک فارس وفی الشرع حرام مطلق مترجم دعالمګیری وايي چې دیوه بله بیا نه څخه دا معلومیږي چې واضع دبازي د نرد اردشیر دی او مقدم یر واضع دشطرنج او تصر یحاتو

څخه د برهان ښکاره ده چې وضع دشطرنج تر بازي د نر دمخه ده ولی چې پر دجمهور بازي دشطرنج وایدله ودوسته ئې بازي دنرد وضع کړه او د دغه ډول اختلاف دی

په اباحت او عدم اباحت کې د بازي دشطرنج .

او صاحب دلغت عالمګیري لیکلي دي «چې : هو حرام عند ابیحنیفه ومباح عند الشافعي او

له دغه ډول نوردو ایات فقهیه په ید ئې پسې ولیکل شي : او په دلیل ظاهر چې قوله بازي حرامي دي دغه هم بازي بلل کیږي نو شطرنج حرام بلل کیږي لیکن نه معلومیږي چې اباحت دشطرنج پر مذهب دشافعي په کم دلیل دی او د تاریخي کتابو څخه دونه ندر معلومیږي چې هر کله چې شمس

باز غه دوجود د حضرت رسالت پناه صلی الله علیه وسلم د مکې پر آسمان طلوع وکې او عالم یا عالمان ئې په نور سره دهدایت روښانه کې او ظلام دکفر او ضلالت د لوحو څخه دزړو

لیرې شو او دا خبر د روز ګار په اطرافو کې کالشمس فی وسط النهار بیدا او ښکاره شو . سلاطینو د (۷) اقلیمو و بارګاه ته د رسالت ئې رسولان ولیږل او غوښتنه د تصدیق د دعوی دختم نبوت

ئې وکړه ، هغه وچې پادشاه د هند هم یو رسول د درو ګوتو هدیو سره ولیږی .

یو شلواړ او بل برګ تنبول او دریم شطرنج او حکم ئې وکې د رسول ته چې شلواړ و حضور ته دختمي مرتب وړاندې کې او ازار بند له ځانه سره و لري او که آنحضرت ازار

بند طلب کې معلومه به شي چې نبی بر حق دی او په دغه ډول برګ تنبول وړاندې کې چې لوازم ئې آهک او نور دي د ځانه سره ئې ولري او شطرنج وړاندې کې او بساط دخپله ځانه سره وساتي یعنې که آنحضرت لوازم د برګ تنبول

او بساط دشطرنج طلب کې یقین به شي چې د اطلب د قسم څخه د معجزې دي او دا هم بیله پیغمبر بر حق څخه د بل چا کار نه دی .

الحاصل رسول و حضور ته دلامع النور سرور کائنات علیه الف الف صلوة وسلام و تحیات د او رسیدی په حسب حکم

دپادشاه اول ئې شلواړ وړاندې کې حضرت وفرمایل ازار بند چیرې دی حاضر ئې که او چې برګ تنبول ئې وړاندې کې دغه ډول ئې لوازم دهغه طلب کړه . حاضری ئې کړه . او تناول ئې هغې وکې او څه وخت چې شطرنج ئې

وړاندې کې و رسول ته ئې وویل چې بساط ئې حاضر که تر دا سې حده چې هغه وخت مابین دعصر او مغرب وو دوی بازي او نیمی و بائل شوی او پري ئې نښودی او په لمانځه دمغرب مشغول شوه یو له شوا فعو

څخه وائي چې استدلال پر اباحت د شطرنج دغه فعل د رسول کریم صلی الله علیه وسلم دی او استدلال پر سنت د بازي د شطرنج په مابین کې دعصر او دمغرب دی او

بیله دې څخه تر کیب نحوی هم چې (الشطرنج اباحنی فتا وهو الشافعي) یعنې بازي دشطرنج مباح کړه و ما ته یو ځوان چې

هغه د شافعي په مذهب ؤ نو دا هم دلالت پر اباحت د شطرنج کوي .

(نحوی ترکیب ددې جملې دادی) الشطرنج مبتدا ده ، اباح فعل ماضی معلوم نون او یا متکلم

مفعول فعل اباح و فتاً فاعل د هغه اباح د فاعل او مفعول سره جمله فعلیه شوه ، خبر دشطرنج مبتدا د خپل خبر سره جمله اسمیه و ګرزیده

او د جمله حالي احتمال هم شته په هر حال که ثبوت د دمخه دوایاتو په حدیث سره وسي البته قابل دقبول دعلما فحول به سي .

او یوه شاعر دشطرنج په مدح کې داسې لیکلي دي .

یا عائب الطشرنج من جهله

ولیس فی الشطرنج من باس

في فهميها علم وفي لعبها
شغـل عن الغيبـة للناس
ويذهل العاشق عن عشقه
وصاحب الكاس عن الكاس

او (تاثري) شاعر په نثر سره په دغه کښې د شطرنج داسې ليکلي او بدي عربي عبارت:

وانما خشب هزم خشباً وامي اورث من غير طائل تعباً.

په کتاب کښې د منهاج الاسلام مؤلفه د مولوي حاجي محمد

کرامت العلي مرحوم دهلوي شاګرد د شاه عبدالعزيز (رح) چې بالفعل په چاپ کښې د کن جامع د علوم معقول او منقول او

خاص بيا په فن کښې د احاديثو ئې نظير ډېر لږ دی.

تحت کبيره د (۴۰۲) چې ذکر د شطرنج ئې کړېدی بعينه دغه عبارت ذکر کېږي.

بازي کول په شطرنج په مذهب دغه چاچې قائل دی په حل سره دغه لکه دغه وخت چې قمار ورسره وي يا لمونځ بې وخته شي يا څکنځل.

ابو بکر داثرم، په خپله جامع کښې په خپل سند د اسقع نامي ذوي (رض) څخه روايت کړيدی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمايل په عبارت عربي سره:

ان الله عزوجل في کل يوم ثلث مائته وستين نظرة الی خلقه ليس لصاحب الشاه فيها نصيب الحديث.
صاحب الشاه شطرنج باز بولي.

او امام مالك ويلي دي چې موږ ته د عبدالله بن عباس (رض)

څخه رسيدلي ده چې دی متولي شو د يتيم د مال او له ترکې څخه د يتيم د پلار ئې شطرنج پيدا کې ودوسېزه ئې هغه وسو.

که بازي د شطرنج حلاله وای په تحقيق سره سوځنګ دغونه وچا تر ولي چې د يتيم مال هم بلل کېدی او په فتاوای نسودی کښې ليکلي دي چې

شطرنج حرام دی په نزد د ډېرو علماو فرق په نزد د شافعيه و داد دي چې اعتماد پر نرد دادی چې کعبتين څکاره کوي نو لکه ازلام داسې و بلل شو او مدار د

شطرنج پر فکر او تأمل دی او دا خو نافع دی په تدبير کښې د جنګ او که فوت د لمانځه يا بلعوضه بازي وي نو مکروه دي په نزد د شافعي او حرام دی

په نزد د نورو او په ذيلعي کښې ئې ليکلي دي:

که په نرد يا شطرنج چا قمار کاوه او لمونځ څخه فوت شو دا قوله فسق دی او يا دغه ډول ډېر د روغي قسمونه په کښې داخله نو قوله کباير د ګناهو شوه او

وايي چې په نرد کښې ردېږي په مجرد دی بازي کولو سره بيله اشتراط څخه د قمار او چې عبرت هم نوي په کښې ولي چې نفس دغه بازي فسق دی.

وقال عليه الصلواة: ملعون دی هغه څوك چې په نرد بازي کوي او هغه څوك چې دده سره برابر دی په خلاف د شطرنج ولي چې اجتهاد پدې کښې مشاع دی نو

په شاهدی ئې ددې ي که نوی ورسره هم ددغو دروموانيو څخه چې موږ ئې دلته ذکر کو ملعون دي هغه څوك چې په شطرنج

بازي کوي يا هغه څوك چې ورته ګوري او لکه آ کل د خنزير د غوښو او خوړل د خنزير د غوښو حرام دی پس لدې ددې امامان نو دتللي دي ودې ته چې بازي د

شطرنج حرام دی وقال الشافعي يکره ولا يحرم. و عبدان في الصحابة وابي موسی في الذيل، و ابن حزم في المحل عن حبته بن مسلم مرسلا تابعي من کتاب التسير

په شرح کښې د جامع الصغير للشيخ الکامل عبدالرؤف المناوي (رح) بازي په شطرنج نه ساقطوی عدالت الاخو په يوه ددې پنځو:

چې قمار پکښې وي او ډېر قسمو نه اوا خراج له لمانځه څخه دده په سبب او بازي کول د يو لاري څخه او چې ذکر شي يو شي له فسقه څخه

اشباه او نظائر د مولانا زين العابدين المشتهر په ابن نجيم المصري الحنفي (رح) او په نوازل سره سوال وشوله ابو القاسم څخه

په باره کښې دغه چاچي و بازي ته د شطرنج ګوري.

فقال ذه ډېر بېرم چې سی دی فاسق غمز عيون البصائر لمولانا السيد احمد الحنفي الحموي (رح) قال يحيی، وامي رويده له مالك څخه چې ويله ئې.

خير نسته په شطرنج کښې او مکروه بلل شويدی تحريماً او په جمهور سره ولوز ع صاحب البيان په بقا کښې د کراهت پر تنزيه او

اروېدلي دي کراهت لري بازي په شطرنج او نورو له دغه دقمه چې باطل وي او ويل کېږي دا آيتونه استدلالاً (فماذا بعد الحق الا الضلال).

استفهام تقريري ئې داسې نسته وروسته لده څخه بل څوك يعني هغه څوك چې خطا شي له حقه

مخخه اوداقع کیږي به ضلالت کښي او کله بیا جمهور د علماؤ تللي دي وتحریم ته د شطرنج او بر دې باندې د دې امامان ولاړ دي او حکی البیهقی چې اجتماع دصحابه‌ؤ پر دې ده او مخنو ویلي

دي. فمن نقل عن احد منهم انه رخص فهو غالط بها بیهقی او غیر له ده مخخه نور علما وائي (الحدیث) ذه یو هیږم به اقوالو دصحابه‌ؤ چې دوی نقلوي اقوال

بیله اسناده او اجماع مخخه ددوی چې دا کافي دي د حجت د مخه مخخه؛ بلکې کله به دې کښي احادیث وارد بږي چې به مخنو کښي ضعف اوارسال وي نو دامنع کوي استشهاد به دوی سره او اعتبار

به دوی سره خصوص به دې پر وطریقو او اشتهار سره د دوی او که له دوی مخخه صلاحیت و نلري دقه حجت دي پر انفراد دمخه او که معلل وي نو هغه قوي کیږي به تعدد

دطرقو دده او به تغایر دشیوخ مرسل دده او به قیاس کښي د نرد سره یجامع الضد بل هو کما قال ابن عمر ومالک وغیر هما شر منه دباره ددې چې شطرنج ابلغ دي

به افساد کي دقلبو تر نرد لپاره داحتیاج دده وفکر ته تقدیر او حساب انقلات بخوا تر نقل به خلاف دنرد چې صاحب اې بازي. وکي وروسته حساب کوي. او شافعي

تللي دي د کراهت تنز یهي ته پر صحیح المشهور له ده مخخه او هغه څوک چې مواظب نه دی پر دې بازي او اعتباد دي وشي دلته به

عرف سره او دا بازي دي نکوي سره پر اعتقاد د تحریم ولي چې و به ګرزي د حیوان به شکل او هذیاني به شي بلکې ساتنه د ژبې عن الخناء و الفحش والسفه او چې قمار نه وي ورسره او به

لار کښي دي بازي نه کوي او نه دي معطل کوي به دغه سبب لمونځ او احرام به ټولو کي.

داهم مخنو شافعه‌ؤ اضافه کي :او هغه څوک چې بازي نکوي دا دذالو سره او دمخو مخخه نه متأثره کیږي لکه حقد او ضغینت او بادا کیږه شي داسې اشاره به لفظ کي چې نا خوښه وي. او

شرح دا علامة الزرقاني دباره دموطا او مقامر به نرد او شطرنج کي داسې وایي:

او دا قوله د کبائر د مخخه د غه دول او هر څوک چې فوت کي صلوة به سبب داشتغال به دوی سره لیکن مجردي بازي به شطرنج نه دي فسق ولې چې مانع الشهاده وي او چې مکروه وي ذمو د به نرد ددې دباره چې اجتهاد دلته مساغ دي.

کافي: نرد به فتحه او به سکون درا به معنی دلغت د فرس حلو،، او مسمی به کباب ارق او نرد شیرهم ورته وایي به ابتدا کښي چې وکتل شوه به کارو کښي د دنیا به دوی کښي دوه اصلو به پیدا شوه چې به حکم دسمی او تخیل چې

ددې لپاره شطرنج وضع شو چې نفس ته شعور بخښي او خواطرو ته حرکت ورکوي بر عمل مطلوب باندې او ویل شویدي چې واضع د نرد او د وضع اې بر فکر یه دا صحاب جبر.

او واضع د شطرنج چې وضع اې بر فکر د قدریه د.

قال یحیی. ماوار و یدل له مالک

مخخه چې ویله اې: نسته خیر به شطرنج کښي به ذیر سره دشین او به زور سره دا عجام او د اهمال او دا مخلور لفته چې حکایت شوه ابن مالک: فالا عجام من

المشاطرة چې هر بازیگر له شطر بیش دي له قطع او اهمال مخخه دلیکلو د نقمو و کوزته به وخت کي د تعبیي او تعقب ددې.

ابن بري وایي: اسما عجمیه نه مشتق کیږي له اسما عربیه مخخه به دې چې دوی خماسي دي او اشتقاق د دوی له شطر مخخه واجبوي چې

دوی ثلاثي دي نو کیږي چې نون او جیم زائد وي او دغه دي بین دفساد.

او شرح دعلامة الزرقاني بر موطي او شیخ کمال الدین د میري به حیوة الحیوان کښي لیکي: لعب الشطرنج مکروه کراهة تنزیهي او ویلي دي چې

حرام دي او مباح او اول اصح دي.

مالك او ابو حنیفه او احمد و یلې دي چې حرام دي او موافقه کړېده له دوی سره له اصحا بو مخخه ذمو د چه حلیمي ,رویاني ؛ او د روایت کړیدی

بیهقي چه محمد بن شیر بن او هشام بن عروه بن ز بیرا و بهر بن حکیم او شعبي او سعید بن جبیر به شطر نج با ز ی

کولی او شافعي وائي چه سعید بن جبیر په شطرنج بازې کوله داستد بارد کیله یعنی من وراء ظهره به بایه کی د غه قدر

چه دلته د کر شوه نوایشات د حلت او حرمت د شطرنج وه اما قطع نظر له دې شخه که به ژور فکر سره و کتل شي معلو میږی چه به دی بازۍ کی به د ښوی مصالحو کې حفظ ما تقدم بلا عبث یا تیږی ې څکه عواقب دا مورو به نظر غا بر سره ویني او به دی ذریعه له اموری مضار څخه مجتنب کیږی او دمنافعو په تدابیر و سره مشتغل گرزی. ولی چی به ټولو بازیو کی کار دفهم او دعقل نشته او غلبه

په هغو کی موقوف به حسن قسمت سره ده.

او په دی کښې موقوف بر حسن تدبیر او فکر صحیح او له دغه حیثه څخه ده چی بازنده د شطرنج

اره قوی حافظه او صحت د حواسو ضروری ده چی بر دښمن غالب شي او دغیظ او غضب څخه لیری یا ته شی نقل دی چی به زمانه کښې د دغفران ماب یعنې نواب میر نظام

علیخان بهادر رئیس د کن یوسړی و بیزو ته تعلیم د شطرنج کړی و. او د شطارانو سره دعصری به شرطبازی کوله او څښی گټله بی

او دیوه سړی سره چه ځان ئې لوی شاطر باله ، نیمه بازی سو یوه چی بیز وغالبه شوه.

او میوه دا مرو دئې په لاس کښې د ر لو ده یو ار بی و امرو د ته کتله او بل و ار بی و بازی ته څو چی به آخر کی د شطرنج متوزع

الحواسه سوه او بازی څښی تیره سوه له دغه قسمه که و شطرنج بازی ته په عین زما کښې د بازی قهر یا بل تشویش پیش سی با الضرور

(۲۶مخ)

د خارجي مطبوعاتو نه — د الهیوال ژباړونه

# اختراعات او نوی شیان

## پاك کونکی ماده:

پدی نژدی وختو کښې انگلستان یوه نوی پاك کونکې ماده جوړه کړی چې په گریس، غوړی، او تیلو سره لړلی قبلی لیری کوی.

دا ماده د پاك کونکی دوا د لودنکی د ه چې په مخصوصه توگه فورمول بندي شوی او اپل شوی مواد او چمونه له منځه وړی.

د وخت په لږ مصرف سره کولای شو چی د دغې ما دی په استعمال سره د کوڅی د مخ او د هر شی سطحه پا که کړو.

د دغې مادی بل ښه والی دادی چې نه فاسد یږی.

## نوی کښتی

ښا کل شوی ده چې دور څښی مسافر تو او د سکی د لو بغاړ و د کښو لو لپاره به نږی چټکی بیړی دلندن د ارلز کورت په بین المللی ننداړ تون کښې په وړیا توگه کښیښو دله شی.

دا کښتی ۲٤٫٦ متره اوږدوالی او ۲٫۰۲ متره سور لری او په یوه ساعت کښې د ۳٦٥ میله تیزوالی د ۱٤۰ آسو تو په قوه یو ماشین په وسله حرکت کوی به هغه مخصوصه ازموینه کښې چې شوی ده دی کښتی و کړای شو چې په هوسانئ د سکی دوه لوبغاړی کش کړی.

ماتیږی. یوه شاعر له قدیمو شاعرانو څخه یوه معما په تازی ژبه و حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم به مبارك نامه او په ذکر سره د شطرنج

دخانوئی لیکلی ده څکه چی د لطافت څخه خالی نه ده دلته لیکل کیږی؛

الاخذ وعدموسی مرتین وضع اصل الطبایع تحت ذین ومسکن خان شطرنج

وخذها وادرج بین ذین الـمد رجین وهذا اسم من لهو به قلبی وقلب جمیع من فی الخافقین.

ترجمه ئې دا ده:

خبر وا وسه او و اخله وعدد دموسی دوه واره چی هغه اربعین ده او اربعین عدد دمیم دی چی دوه میمه حاصل سوه او کښېږی ده اصل دطبائعو لاندی تردې

میمانو چی مراد څښی عناصر اربعه دی او عددئی دال دی یعنې پسله له د دو میمانو دال کښېږده چی دوه او یو دال حاصل سی او د شطرنج خانی سا کښی که

چی اته خانی دی او عدد ئې څای حطی دی او و نسه هغه د دوو میمانو په منځ کی او هغه نوم د هغه چا دی چی زړه زما برده عاشق دی او زړونه د ټولو کسانو چی په شرق او غرب کښې دی.

ورو سته له دی نو پاك نوم د محمد علیه صلوة و اسلام حاصل شو.

پای

# د ژوند ازه

لاری

علم یو داسی لوی نعمت دی چې په ژوندانه کی دا فتخار تاج او تر مرگ وروسته یو ډون یادگار دی

حضرت علی (ك)



که سړه دا غونه شو دا اغادی که سړه دا غو نه یا ته شو دا بر مختگ دی او که به گډه مو کاد سره و کړ دا بر یا لیتوب دی.

دا قصه د مصر پیاوړي لیکوال مصطفی لطفي منفلوطي د الذکر تر عنوان لاندې پخپل (العبرات) نومي کتاب کښې په عربي لیکلې ده چې زه یې د کندهار مجلې د ګرانو ویونکو د استفادې له پاره په پښتو ترجمه کوم.
(نجیب)

د مصطفی لطفي منفلوطي له العبرات نومي عربي کتاب څخه:

د عبدالقدوس «نجیب» ترجمه:

# یادونه

ابو عبدالله د غرناطې اخیرني قولواک ته چې د ملک فردیناند او ملکې ایزابلا خروشیدلو لښکرو په هر ځای کښې سخته ماته ورکړه او هغه یې وتښتې ته مجبور کړ، نو د کښتۍ تر سپریدو او د افریقې تر تګه

د مخه د روم د خلیج پر غاړه د جبل الطارق د غره په لمن کښې، لږ څه تم شو په داسې حال کښې چې قول کهول نژدې خپلوان او د بني احمر مخور پر را ګرځیدلي وه په ډېر حسرت سره یې په اوښلنو سترګو او کوګلي زړه

د خپل پراخ ملک وخواته سترګې واړولې یو سوړ اسویلی یې وکیښ ژړا یې د دوبقې څخه و سترګو ته ونیوله او په ډک زړه سره یې په زوره وژړله خود په یې ژړل، ولې چې د پلارو نیکه آباد ملک یې په جبر

سره د لاسه ووتی او دی په یو عالم ارمانو کښې په ډېر یاس سره په تش لاس، کوګلي زړه و وتلو ته مجبور شو په دې وخت کښې یوه هاتفي آواز چې د بحر پر مخ یې څپو او د غره په کمرو کښې ګړونجې پیدا کړې د ده څخه

سر له زنګنو څخه راپورته کړ او پر یوه سپین ږیري بوډا باندې یې چې د غره د غار په خوله کښې پر لګېده تکیه کړې او له تندي څخه یې د ریاضت آثار ځلیدل سترګې واګېدې چې ویل یې:

اې تښتیدلي ملکه! حق لرې چې پر خپله تللې باچهي وژاړې، وژاړه د ښځو په څېر وژاړه ځکه چې تا د میړو په شان خپل د پلارو نیکه آباد ملک ونه ساتلای

شوای؛ تا پرون ډېر په کټکې خندلي دي نو نن باید هومره په کوډبل وژاړې ولې چې ازمویلي خلک وایې خوشحالي د ژوندون روڼا ورځ او خواشیني یې توره شپه ده. ورځ لا چې نه وې ځلیدلې چې په ورو سته یې یې تروږمې شپه راشي که ستا د ملک پایښل د قدر له صدمو

او د قضا له نوازلو څخه کوم اثر وای چې ستا د قدرت لاس یې د مقاومت پښه ګوډه کړې وای نو اوس به دې کار دومره سخت نه وو، اما تا په لوی لاس ځان د ظلم ته تسلیم کړ او د تیښتې ننګینه لار دې واخیسته.

اې زما جانه! د هغه پښیمانه په څېر سره پر خپل پریشانه حال ډېر و ژاړه چې د کوم امید هیله نه وي ورته پاته شوي.

پاک څښتن پر خپل کوم بنده باندې د بندګانو د ظلم اراده نلري او نه په یوه کار کښې د کارو د خلګو د شر او ضرر غوښتونکی دی مګر ناقص وګړي قصداً تر هغو پورې له سمې لارې څخه منحرف کیږي تر څو چې د خپلو ناوړو عملو د مخوف حوض و غاړې ته رسیږي په دې وخت

کښې نو بیا د مرګ له بیرې څخه ریږدي او ځانونه مظلومان ګڼي، د دې بدبختانو د لویو کړ کنځو او خوټه ارادتاً ځي چې هغه یې پر سر و راشیوه شي او مغزونه یې ور و دردوي.

تا چې د پاک خدای په ویش قناعت نه درلودی او د باچهي د مقدراتو د لاس نه د راوستلو په حرص سره دې

له اکاسره جنگ شروع او له غدار غلیم څخه دی د ده دمغلو بیدو لپاره استعانت وغوښتې، هغه غلیم ستاسو له دې نفاقه څخه پوره گټه واخیسته څو په نتیجه کښې ئې ستا او ستا د مغلوب اکا سرونه داسې سره وجنگول چې له تودو وینو څخه ئې ستاسې اوستاسې دملگرو د غرقولو لپاره کندې ډکې شوې .

اې د بنی احمر قبره ! او، کاله چې تر دغې کر کنډی لاندې ستاسې داخیر نی باچا دوتلو تماشې ته ناست یم نه پوهیدم د ملك کارونه چې جاهـلانو او غبیانو ته وسپارل شي دوام نه لري .

تاسې هغه نه یاست چې بوقبل نه مو د دښمنی پیغامونه لیږل او بیگناه مسلمانانمو په جبر سره دوینو تو یولو میدان تـه راکش کړل ؛ په وروڼو مو دوروڼو سرونه ووهل او پلرونه مو د زامنو په وینو کښې ډوب کړل .

اې بې فکرو جاه طلبو ؛ تاسې هر بوه و دښمن ته د بومنتهور قاید وظیفه اجرا کوله نوځکه غدار غلیم بیله کوم ممانعت څخه ملك ته ورننووت اوستاسې لدې خدمت گذارۍ څخه ئې د پیغور په تبسم سره غټ تشکر وکـړ .

تاسې د پاك خدای په حضور کښې د اسلام د شان و شوکت د برهمولو تومتیان یاست او ډیر ژر به ددین غلیمانو ته د بیگناهو مسلمانانو د سپارلو په جرم سره محاکمه شئ، بیا به دهغو ودانو ښارونو او جگو ماڼیو چې نیکه گانو مو د آروځونو د ښندلو په بدل کښې پیروولې وه او تاسې مفت له لاسه ورکړه پوښتنه در څخه وشي .

آیا اې دغفلت خوب وړو ! له تاسې څخه به د مسلمانانو د باعظمته مسجدونو، چې به فرشو ئې دلکونو خدای پرستو پاك تندې لگیدلې وه او اوس د عیسویانو د ناپاکو بوټونو تلې پر لگول کیږي سوال ونه شي ؛

او د قیامت په ورځ به الله پاك و تاسې ناخلفو نکـو ته ونه وایی چې جاه طلبیو او بې اتفاقیو هومره نشـ کړي او د سده اېستلې واست چې زما د موذنخانو

دپاسه مو چې پنځه وخته دخلکو د عبادت بللو لپاره د الله اکبر غږ پورته کیدی د ناقوس زنگوله وشرنگوله .

اې خود پرستو متکبرو ؛ لږ څه وشرمیږئ هومره سپك او بې حیثیته شواست ؛ هر ملك ته چې د دین به گناه بناه وروړئ هغه مو په ډیره بیقدرۍ سره باسې، هیڅ د ډپکا و ځای نه لري مجبوره یاست چې زما په څیر سره په کلونه کلونه دغرو په تودو غارو کښې د ویرۍ په حال کښې تیرول او یا به دذلت او مرۍ توب په ژوند

راضي کیږئ ؛ کاشکې مونږ دیهودو په څیر سره بې ملکه بې نظامه او د نړۍ په هر گوټ کښې تیت و پرك خپاره وای، خو ستاسې غوندې ظالمانو اوزړه سختو باچهانو تر لاس لاندې نه وای .

تاسې خو هغه زمامداران یاست چې زمونږ دښایسته ځلمو سرونه مو د بیځایو طمعو او هوا ؤ هوس د تامین لپاره د دښمنانو په تیرو تورو و بیبل او د خپلو شومو مطامعو قربانیان مو کړل، دهغو په سیاه سرو مو دغم کور بل

وواهه او په وړو ماشومانو ئې زړونه وغوښته ؛ په رشتیا چې هغه قوم به نه بریالی شوی او نه به بریالی شي چې دظلم او استبداد اور پکښې بل وي .

اې د بنی احمر وگړو ! دا مه وایاست چې پاك خدای به له تاسې څخه زما او زما د بیگناه کاله دهغو ځوانانو د وړو پوښتنه ونه کړي چې په زور او جبر مو له ما ملا کړ و بې بوډا څخه جلا او د بې شرفۍ ډاگ ته مو

دخپلو وروڼو د وینو بهولو لپاره وایستل ترڅو چې په ډیر فجیع او ننگین وضعیت سره په ورك نومو مړ و کښې ستاسې د نـاوړو خواهشاتـو او هوسرانیو قربانیان شول، دادي چې پوره اوه کاله کیږي چې

ستاسې د ظلم له ویرې دحیوان په څیر پوازې ددغه غره په تود غار کښې دهغو نوموړو کو زامنو په یاد ژاړم او دعا کوم چې څښتن مې ژر له هغو سره په هغه ابدي دنیا کښې یو ځای کړي .

دا چې ئې وویل سترگې ئې له غریـوه څخه ډك شو او زنورڅه ویلو توان ئې نه درلودی دالکړې په تکیه سره په غـار ننوتې او د غـره په لمن کښې له سترگو څخه نهام شو .

د بوډا دې حقانی وینا ؤ دهغه بې تاجو تخته باچا پر زړه ډیر اثر وکړ په داسې حال کښې چې د تېر عظمت مناظرې تر سترگو دورې ایسته کیدلې اود حیرت په سیند کښې لاهو ؤ په زوره ئې نارې کړه :

دا بوډا بشر نه بلکې دالهی عدل آواز و د داسې دا تلونکو بدبختیو څخه ئې خبر کړم چې اوسنی حال

سعادت ورته ایسی بیله شکه زه دې تو بیخ او ملامتی وړیم ای زما یاره که څښتن هره معامله چې ستا رضا دی د اسره وی کړه زه اوس له تا څخه د ځان په باره کښې د عدالت هیله لرم، دا چې ئې وویل سمد ستی په بیړی کښې سره له کهوله سپور او بیړۍ د خلکو له نظره څخه غائبه شوه .

د اسلامی تاریخ پاڼو د اندلس په حصه کښې دا اعلان وکړ چې نن د عربو د اتهسو کالو پاچهی ختمه شوه .

پسله ځلیر ویشتو کالو څخه ودې دردناکی پیښی په څو له افریقا کښې د بنی احمر له قبره څخه بیله یو شل کلن ځلمی څخه چې سعید نومیدی نور څوک پاته نه شو

سعید غرناطه نه وه لیدلی او نه ئې د الحمرا ماڼی – المرج جنته العریف، نهر شنیل، عین الدمع، جبل الثلج، تماشه کړی وه څو په تعریف ئې د خلکو له خولو یا د شاعرانو له اشعارو څخه لږ څه خبر ؤ ده د هیر منو او ښکلو هغه د للو للو ترانی چې دده د پلار نیکه جاه جلال ئې تمثیلاوه او د

زانګو زنګولو په وخت کښې ئې ځنی اروید لی وی نشوای هیر ولای دده د بدن ویښتان به د هغو غمجنو او اثر ناکو مرثیو چې شاعرانو د خپلو غمجنو زړو د دردونه په ولی کړی وه جګ جګ درید ل او د فراغت په وخت کښې به ئې هم کله کله له ځانه سره ویلی او له هر بیت سره

به ئې دومره ژړل چې په اوښکو به ئې د دست گریوان لوند شو او سمد ستی به ئې په زړه کښې وڅښتن ته داهیله څرګنده له چې یو واری غرناطه به ما او وینه او د زمانی په څولو نا وړه می وازمویه .

ده خوږ زغوښتل چې په دی مقصد کښې کامیابه شی مګر د کوردیوئې سپین سری بوډه نارو غی او بیکسی ئې د تګ مانع وه کله چې دهغی دژوند موده لنډه شوه نو ده دستی دعربی طبیب په لباس کښې د طبی بوټو پیدا کولو په پلمه د اندلس و نژدې غرونو ته په بیړه

کښې سفر وکړ او د پلار و نیکه و هغو زړو وړو نکو آثارو ته ورسیدی چې په مرثیو او شعرونو کښې ئې نومونه اوریدلی وه یوه ورځ به داسی حال کښې چې د لمر وړانګی د پر بریښندونکی وی دی د جبل الثلج پر یوې

تنګی شنی او جګې غونډۍ باندې وختی او هلته ئې د دوڅو او یو وشر کی ته نظر واچاوه چې کله به ئې سطحه داسی آرامه او ځلیدونکی شوه چې تا به ویل د

بلور دو کمیس ئې اغوستې دی او یا دزرو قبه ئې پر سر ایښې ده او کله به ئې بیا داسی پیچ و تاب خوړه چې تا به وویل ای ښامار دی مستی کوی یوې خوا او بلی خوا ته تاوېږی .

د پردیس سعید به کله د ښار و ښنو ځمکو، جګو قصرو ښکلی د عقیق په څیر آسمان د مسجد و نو لوړو منارو ته هم نظر وا وښتی د پلار و نیکه د تیر شان شوکت قصی به ئې وریا دسوی د اوسنی محرومیت او تیر مجد و عظمت د حال په مقایسه سره به ئې سترګی او زړه

لا زیات غمجن شو بی اختیاره به ئې داچیغه تر خوله و وتله دا ملک خو زما د پلر او نیکه ګانو میراث دی مګر زما په برخه یو د یاسه ډک نظر دی چې یو مظلوم ئې پر خپل مغصوب حق یا ندی اچوی دا په ناز جوړ شوی ماڼۍ چې په لیدو ئې سترګی نه مړ یږی زما د پلار و نیکه ملک ؤ

خو اوس دښمنان پکښې د ناز خوبونه کوی مګر هغه اصلی مالکان ئې بیله شکو او د چو غونډیو بل بستر نه لری د لوړی منارې او بریښیدونکی قبې چې سرونه ئې آسمان ته جګ نیولی دی د خدای حضور ته دخپلو اصلی

مالکانو د بیرته ستنیدو دعاوی کوی مګر اجابت ئې یو محال امر دا ته ښکاریږی، په دغو باغو کښې به دوی د

خوشحالی ژوند تیراوه او تر ونو لاندې به ئې دخوب پالنګونه ایښو دل ددې لویو ولی له څنګه سره به ئې تګ راتګ کاوه مګر نن نه هغه تلونکی شته او نه راتلونکی

بیا ئې سترګی پورته کړی که ئې کتل لمر کراره کراره د مغرب خوا ته لویدونکی ؤ او دشپې تور بوښو پرغل کوونکو دوړ ځی په ستري لښکر غشی او دول ژړ ئې سترګی سره ؤ دغلی او تندی ئې پر زنګنو تکیه کې

له ځانه سره ئې وویل: بیله شکه چې کائینات ثمود د ژوندانه دوړامو ممثلین دی دورځی په تګ او دشپې په راتګ سره دولتونه له منځه ځی تاجونه برهم کیږی تاریکه دروښنایی ځای نیسی د مرګ او دیځی دژوند

پرمخ را اوړی دا وینا چې ئې وکړه لاس ئې تر سر لاندې کې د ځمکی او آسمان په فراخ بستر کښې داسی څیر امانه

وغزیدی چې تر سپیده و پورې په ځان نه ؤ خبر کله چې راویښ شو او د یوی ولی په څادی او یو ئې اودس تازه او لمونځ ادا کی د ښار و خوا ته کرار کرار روان شو

(نور بیا)

تقریظ :

# دخندا پلوشی

پورتنی عنوان د هغه کتاب نوم دی چه د څو مدی راپه دی خوا د کندهار په دولتی مطبعه کی په پښتو ملی ژبه زموږ د قلمی همکار او د دې کتاب د لیکوال ښاغلی محمد ناصر «نصرت» د پر له پسی زیار او زحمت په اثر په خپله دده په ځانګړی لګښت خپور سوی دی.
زموږ په عقیده یو بریالی اثر هغه وخت دخلګو د دماغو نو په تاریکو زاویو کی خپلی پلوشی خپروی یا پر اجتماعی ذهنیت اغیزه کوی چه لیکوونکی ئی په اجتماع و رننوتلی.

دخلګو اجتماعی دردونه او اخلاقی خلاګانی ئی له نیژدی څخه مطالعه کړی او د هغو د پاره ئی د اصلاح اساسی چاری دخلګو په ژبه دخلګو د روحیاتو سره موافق دیو ادبی ظرافت په چوکاټ کی داسی څیړلی وی چه د بیرونی ټولنی حقایقو تحلیل ته ئی دیو عمومی نظر توجه په انتباهی ډول داسی ورجلب کړی وی چه دیو سالم انتقاد په صورت کی ئی له یوی خوا او دې نیمګړی نظر ته د وسعت د پاره قوت ور بخښلی وی او د بلی خوا ئی په دی لاره کی دهغوی احساسات ور ژوبل کړی نه وی.

زموږ هم په بشپړ یقین سره ویلای سو چه د خندا پلوشی فکاهی اثر هم دیو داسی مثبت خصوصیت څخه مستفید او د افتخار دهغه د محترم لیکوال ښاغلی نصرت په برخه دی دا ځکه چه ددی کتاب څلور نیم کی محتویات په اجتماعی او اقتصادی سویه پر داسی واقعیتو بنادی چه دهغه څخه انکار او یا ئی د اصلاح په لار کی بی اعتنائی زموږ د اساسی پرمختګ مانع ګرځی د ادی موږ د دی ادعا د اثبات د پاره ددی مهم کتاب ه «۱۷» صفحه کی یو ادبی او انتقادی ټوکه د «استاده بیرغ» ترسر خط لاندی دلته د نمونی په توګه کټ مټ خپرو و څو ګران لوستونکی ددی غنیمت اثر په برخه کی زموږ ادعا تصدیق کړی او لږ تر لږه په دی ترڅ کی دهغه په مهمو ټکو وپوهیږی.

«یو خیاط د سختی ناروغی پر بستر پروت ؤ د خوب په عالم کی ئی یو لوی بیرغ پا هوا کی ولیدی چه پر هغه باندی د هغه ټو کران راځوړند و ه کم چه ده له مشتریانو څخه ترو بولی وه او هم ئی ولیدل چه د عذاب ملائیکی په یو د لاس دغه بیرغ او په بل لاس کی یو لوی ګروز نیولی دی چه د هر ټکره پرو ز غه خیاط پر سر په و هی.

کله چه له خوب ه و بیښ سو او له ځانه سره ئی عهد و کړ چه که دا پلازه جوړ او خیاطی شروع کړم بیا د مشتریانو ټو کران نه غلا کوم او هم به دغه یاو هعا دت له ځانه لیری کوم څرنګه چه دغه خیاط په ځان پوره باور نه درلود نو د غ تفصیل ئی خپل یو شاګرد ته بیان کړ او پر هغه ئی

ټینګه کړه کله چ ز دد کالو به ستګینتو باندی لاس پوری کړم ته بر اته وائی استاده بیرغ تر دغو خبرو وروسته ئی تر یو وخته پوری د خپل شاګرد خبرو ته په غوږ نیولی او له خپل قول نه اوښتی لیکن یوه ورځ د خیاط کوم مشتری یو ډیر قیمت لرونکی ټوکر ور ته راوړی درونی سپاره چه کالی څخه ور جوړ کړی په دی وخت کی د خیاط قوی تر یو سخت طوفان لاندی راغله

د ۳۰ مخ پاتې

شاگرد چه په خیاط کې د خیانت احساس وليد نو څو ځلې ئې پر ناري کړه چه استاده بیرغ. استاده بیرغ.

خو استاد ئې حال پلن وا چاوه او په قهر ئې ورته وویل چپ سه بې علمه سړيه ته څه خبر ئې چه دغه ټکر هلته ځړيدی که يه؟!»

دادی موږ ددې پورتنۍ ټوکې څخه داسې نتيجه تر لاسه کوو او په معنوي ډول داسې استفاده ور څخه کولای سو چه موږ هم په اجتماعي سویـــه ځینې داسې کسان ښودلای سو چه په تـــربیوي لحاظ د يو فاسد سیستم تابع وي خو کله چه د يو کاذب شهرت په تمه یا د يوې شخصي ګټې په منظور د جنون مرحلې ته ورسیږي نو د هغه خیاط په موقف کې قرار نیسي چه د خپلو کړو څخه په مصنوعي او موقتي توګه تایب کیږي خو کله چه بیا د خپلې شخصي آرزو معراج ته وصل سي هلته هم د همدې استاد په څیر د اجتماعي خدمت ټول تضمینونه ماتوي او د خلکو پر حقوقو په خپله د يو متعرض بڼه غوره کوي.

دا کتاب چه د پښتو د ملي ژبې د تعمیم او انکشاف په لار کې يو غوره اثر ګڼل کیږي.

د کندهار مجلې ئې هم په خپل وار مطالعه د هر چا دپاره په تیره بیا ځوانانو ته ګټوره ګڼي ضمناً ښاغلي نصرت ته تبریک وائي او د ده ټولو هغو ربړو ته د قدر په سترګه ګوري کوم چه ددې ارزښتناك اثر د خپرولو په لاره کې ئې ګاللې دي.

(اداره)



د، خپلواکی څلی